# حرک

دعلمي او جهادي شخصيت

مولوي محمد نبي محمدي رَحِمَهُ ٱللَّهُ په ياد کې

دوولسم کال دريمه گڼه پرلپسې ۸۷ گڼه، غويی، ۱۳۹۳ل، جمادی الثاني ۱۴۳۶هق، اپريل ۲۰۱۵م

- د پگواش په سيمينار کې داسلامي امارت د پلاوي وينا
- د هيواد په شمال کې د عزم څپې
- استفاده امريکا از مسلمانان ميانه رو
- دثور ۷ او اتمه دوه ورځې او تاريخي عبرتونه !
- افغانستان د طالبانو د بيا واکمنۍ په انتظار کې...

## درآمد انگليس

## از افغانستان چقدر بوده است؟








## علمي ، فرهنګي ، ټولنیزه اسلامي خپرونه

دوولسم کال دریمه ګڼه - پرلپسې ۸۷ ګڼه - غویی ۱۳۹۴ل،
جمادی الثاني ۱۴۳۶ق-اپریل۲۰۱۵م

## لړلیک



**امتیاز :**

**دا متیازخاوند :** دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر :** عبید تنویر

**لیکوال پلاوی :** ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

**ګډون :**

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۸۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۲٤۰ کلدارې |
| امریکا : | ٦۰ ډالره |
| اروپا : | ٦۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۱۵ افغانۍ<br>۲۵ کلدارې |

**یادونه**

حتمي نه ده چې په ځرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي ځانګه

**پتې :**

کابل : د ځرک دفتر srak_111@yahoo.com

بسم الله الرحمن الرحیم

# دمتین عزم مثمري پایلې!

تردې وړاندې به چې کله دهیواد په کومه برخه کې دکابل دګوډاګي رژیم اوبادارانو ژامې دمجاهدینو له لاسه ماتې اوکړېدې شوې، نو لنډ په لنډه به دکابل ډنډورچیانو دخپل شکست او زیان دپټولو لپاره ددې نغارې په غږولو پیل وکړ، چې ګواکې په دغو سیمو کې دګاونډي هیواد لاس دخیل و، طرحه اوپلان په ګاونډي هیواد کې جوړ شوی و او یا په اصطلاح طالبان له سرحدي سیمو څخه راوښتي وو !!

خو دعزم دعملیاتو له پیل سره چې په نور هیواد سربیره یې مثمرې نتیجې اوبریمنې پایلې دهیواد په شمال کې ډېرې ژر اوښکاره وځلېدې اود (ع غ) دمتزلزلې ادارې له پوځي او امنیتي ځواک څخه یې حیرانوونکې کوکارې پورته کړې، ګڼې ولسوالۍ، ښار ګوټي اوپراخې سیمې یې تر ولکې راوستې، په دې ځای کې دشرمیدلې ادارې دغې پرسوده تبلیغاتي ډنډورې ته مجال پیدا نشو چې وو ایي دشمال په فتوحاتو کې دکوم ګاونډي هیواد لاس اومرسته دخیله وه.

ځکه که داخبره دوی کړې وای اوبیایي وکړي، نو تور مخ به یې نور هم له خجالته تور او ذلیل وګرځي، چې په څه ډول طالبان له ګاونډي هیواد څخه تر شمال پورې ورسیدل، یاخو طالبان په خپل قوت او ځانګړې جهادي تکتیک ددښمن په دومره سترو امنیتي جالونو او امنیتي خنډونو ورو ختل اویاهم دکابل رژیم دومره ویده اومرګاني شپو وهلي چې طالبان یې تر سترګو لاندې تیریږي او هغه یې نه ویني.

داچې دښمن شمال دخپل ځان لپاره دامن سیمې او دمزو او چړچو ورشوګانې بللې اودخپلو خواهشاتو داشباع لپاره یې یو ائینه مأمونه خونه همدا سیمه ګڼله ځکه نو داسلامي امارت ځیرکو نظامي مسؤلینو دخپلو جهادي وجایبو په اساس دې سیمې ته خاصه توجه وکړه او هلته داسلامي امارت اتلو قوتونو په لنډ وخت کې ستر فتوحات ترلاسه کړل او سپین توغ یې دغلیم په مستحکمو مراکزو کې ورپاوه.

تمه ده چې دعزم دمتینو عملیاتو په سیوري کې به الله تعالی دهیواد په نورو سیمو کې، چې هلته لاله وړاندې اسلامي امارت مستحکمه اوغښتلې سلطه لري، حیرانونکي فتوحات او لاسته راوړنې نورې هم ولورو ي، دکفر او ګمراهۍ ځالې اوادې به له یوې مخې محوه کړي او داسلامي شریعت بشپړ نفاذ ته به زمینه برابره کړي. (ان شاالله تعالی)

# د پګواش په سیمینار کې

# د اسلامي امارت پلاوي وینا

بسم الله الرحمن الرحیم

**سریزه**

الحمد لله رب العلمین والصلا ة والسلام علی سیدنا ونبینا محمد و آله وأصحابه أجمعین. أما بعد:

قال الله تعالی، أعوذ بالله من الشیطن الرجیم: (لاخَیْرَ فِي كَثِیرٍ مِّن نَّجْوَاهُمْ إِلاَّ مَنْ أَمَرَ بِصَدَقَةٍ أَوْ مَعْرُوفٍ أَوْ إِصْلاَحٍ بَیْنَ النَّاسِ وَمَن یَفْعَلْ ذَلِكَ ابْتَغَاء مَرْضَاتِ اللّهِ فَسَوْفَ نُؤْتِیهِ أَجْرًا عَظِیمًا). صدق الله العظیم .سورة النسأ آیة ﴿١١٤﴾.

تر ټولو د مخه، د پګواش د نړیوالې مؤسسې څخه په تیره بیا د هغې د سکرترجنرال ښاغلي پروفیسور پاولو کوټا راموسینو څخه مننه کوم چې د دوی او د ورسره ملګرو د هڅو له امله ، د دې غونډې جوړیدل ممکن شول. همدا راز، د قطر د مسلمان او ورور حکومت څخه چې د دې غونډې ګډونوالوته یې لازمې آسانتیاوې برابرې کړې دي، مننه کوو. راغلیو ګډونوالو ته سلامونه او احترامات وړاندي کوو.

**ښاغلیو حاضرینو!** که د افغانستان تېر لنډ تاریخ ته وګورو، د طالبانو اسلامي تحریک هغه وخت رامنځ ته شو، کله چې په ګران هیواد کې، نه د چا سر محفوظ و او نه مال، هر زورواکي پخپله سیمه کې د خپلې خوښې واکمني چلوله. دهغه وینا د هغه قانون و. هیواد د تجزیې په لور روان و. نړیواله ټولنه هم دغو حالاتو ته لاس تر زنې ناسته وه.. نه یې د څه کولو اراده درلوده او نه پلان. په دې شرایطو کې یو تعداد مخلص افغان مجاهدین او د دیني مدارسو شاګردان، دعالیقدر محترم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد حفظه الله تر مشرۍ لاندې، د طالبانو د اسلامي تحریک په شکل کې، د ولس د نجات لپاره راپورته شول.

دا یو افغاني او اسلامي حرکت و او د قوت سرچینه یې د ولس ملاتړ او مینه وه. همدا وجه وه چې په لنډه موده کې د هیواد په ډیرو سیمو کې د سولې او امنیت په راوستو کې بریالي شول. د خلکو مال، سر او عزت یې خوندي کړ، د مخدره موادو قاچاق او کښت یې منع کړ، د هیواد د تجزیې مخه یې ونیوله او په هیواد کې یې اسلامي نظام نافذ کړ. خو له پیل څخه ددې نوي ټوکېدلي نظام په خلاف ، د مختلفو هیوادونو او کړیو له خوا منفي تبلیغات پیل شول. هره ورځ یې د هغه په خلاف نوې-نوې دسیسې جوړولې.

دا منو چې د اسلامي امارت اعضاوو او منسوبینو بـه دکافي تجربې نه درلودلو له امله، ځینې سهوې کـړې وي او نیمګړتیاوې به موجـودې وې، خـو د دوی هـدف د اسـلامي نظام په بنه کې د مجاهدینو د قربانیو د ثمرې ترلاسه کول و، چې د ذات البینی جګړو له امله لا نه وه ترلاسه شوې، بلکې دغه جګړې، د جهاد او مجاهدینو د بدنامۍ سـبب ګرځیـدلې وې. متاسفانه، یادو دسیسو تر هغو دوام درلود تـر څـو چـې امریکـې او ملګـرو یـې د تروریـزم تـر پلمـې لانـدې پـه افغانستان یرغل وکړ او د اسلامي امارت علني واکمني یـې ختمه کړه.

د یرغل وروسته یعني د ۲۰۰۱ کال د اکتوبر د میاشتې نه نیولې بیا تر نن پورې چې څه کم څوارلس کاله تیریـږي، امریکایـانو او ملګـرو یـې د افغـان ولـس او مجاهـدینو پـه خلاف هر ډول حربې او وسـلې اسـتعمال کـړې. پـه زرګونـو افغانان یې چې د سپتمبر د پیښې سره یې هیڅ ډول تـړاو نـه درلود، په بې رحمۍ شهیدان او ټپیـان کـړل، او د کېمیـاوي وسلو د استعمال لـه املـه یـې پـه وژونکـو نـاروغیو اختـه کړل. ډیر بیګناه وګړي یې بګرام، ګوانتانامو او نـورو پټـو او ښکاره زندانونو ته واچول اوسخت یې شکنجه کـړل. بـې له محاکمې یې په کلونو کلونو په زندانونو کـې وسـاتل او ډیـری اوس هم په زندانونو کې د مظلومیت شپې او ورځـې تېروي، کورونـه او باغونـه یـې وران کـړل، زمـونږ د دینـي مقدساتو او د شهیدانو د پاکو اجسادو بیحرمتـي یـې وکـړه، حتی د فاتحې، جنازو او د ودونـو پـه مراسـمو یـې بمبـارۍ وکړې، خو د زور او جبر دغې ستراتیژۍ له وژنو او ورانولو پرته بله لاسته راوړنه نه ده درلودلې. یوازې افغانانو ته یـې یو انسانی ناورین رامینځ ته کړ.

له بلـې خـوا، امریکـې تـه هـم مـادي او ځـاني تـاوان واوښت او خپل نړیـوال حیثیـت یـې زیـانمن کـړ. د بشـر د حقوقو د دفاع او ساتنې په هکله یې پخپلـو پخوانیـو لـوړو دعوو پخپله د بطلان کرښه راکش کړه او لنډ مهاله او اوږد مهاله استعماري پلانونه یې نیمګړي پاته شول. کـه بیـا هـم دغه ستراتیژي همدغه شان دوام ومومي، د دې پرته بـه بلـه مثبته لاسته راوړنه ونلري، بلکې افغانانو ته د زیـان اړولـو تر څنګ به امریکا او ملګري یې هم د تیـر وخـت پـه شـان، زیان ووینې. خو که یرغل کوونکي هیوادونه واقعا غـواړي چې په افغانستان کې وضع بدله شي، نـو تـر هرڅـه د مخـه باید په واقعیتونو ولاړه تګـلاره رامیـنځ تـه کـړي. د افغـان ولس مشروع حق چې هغه خپلواکي او د خپلې خوښې نظام دی، ومني، دا ځکه چې سوله د عدالت د تامین په نتیجه کې راتلی شي، د ظلم، یرغل، تبعیض او زورواکۍ په نتیجه کې نشي راتلی. زمونږ د هیواد تاریخ د دې ټکي ښه ګواه دی.

غواړو، له دغې مقدمې وروسته د لاندنیو موضـوعاتو په هکله، خپل نظر وړاندې کړو:

### اوسنی وضعیت

د افغانسـتان اوسـنی وضـعیت د اشـغال او د هغـه پـه نتیجه کې د رامینځته شویو تګلارو زیږنده دی. له یوې خوا هیواد عملا اشغال دی، خارجي عسکر د افغانانو په کورونو شپني بریدونه کوي، بیګناه خلک د هغوی د کورنۍ د غړیـو په مخکې شهیدانوي، ړندې بمبارۍ کوي، دافغـان مسـلمان ولس د مقدساتو توهین کوي، اربکیان او د کابل پـه اداري پورې تړلي نور وسـله وال کسـان د خلکـو پـه مـال، سر او عزت لـوټې کـوي او کورونـه او ځمکـې یـې غصبوي. پـه ځانګړي ډول د ښځو ژوند چې د هغوی اساسي حـق دی، لـه

ګواښ سره مخامخ دی. د موثقو راپورونو له مخې په سلهاوو ښځې په مختلفو ډولونو د زور زیاتي قرباني کېږي او ډیری یې ژوند له لاسه ورکوي.

افغانستان په نړۍ کې د اداري فساد او د مخدره موادو د قاچاق په لیست کې لومړی مقام لري. دا هغه دلایل دي چې د هغو له امله ، هېواد د یوه بحران او نامعلومې آینده په لور روان دی. له بلې خوا د هیواد د اسلامي او ملي هویت د له مینځه وړلو هڅې روانې دي، پټ او ښکاره لاسونه د هیواد د وروڼو قومونو ترمینځ د نفرت او کرکې تخم شیندي، د هیواد دننه یې داسې کړۍ او اشخاص استخدام کړي چې د هیواد د ملي ګټو په ځای د پردیو ګټې مقدمې ګڼي او زمونږ ملي مصالح یې د خطر سره مخامخ کړي دي. دا ټول د افغانستان په اوسني بحراني وضعیت کې ستر نقش لري.

د دې ناخوالو په مقابل کې، اوسنی مقاومت یو اسلامي او ملي پاڅون دی. که روان جهادي مقاومت د ملي پاڅون بڼه نه درلودای، په عالم اسباب کې یو تنظیم د یوه تنظیم یا ډلې په توګه نشي کولی د نېږدې پنځوسو هیوادونو سره چې مدرنه وسله او تکنالوژي هم ولري، مقابله وکړي. لکن موږ اوس عملا وینو چې اسلامي امارت د هیواد په زیاته برخه کې شتون لري. خلک خپلې دعوې د کابل د ادارې د محاکمو په ځای د اسلامي امارت محاکمو ته ور وړي.

د یرغلګرو او د هغوی د ملاتړو په زرګونو بریښنایي او چاپي رسنۍ، د اوسني اسلامي او ملي مقاومت په خلاف په منفي تبلیغاتو لګیا دي، غواړي د جهادي مقاومت شخصیت او شهرت ترور کړي، خو ځنګه چې دا ملي پاڅون دی، نو نه دي توانیدلي چې د دوی او ولس ترمینځ درز واچوي او یا د افغان مجاهد ولس اجتماعي اراده او قوت د وسلې په زور ایل کړي، بلکې موږ وینو چې د وخت په تیریدو سره، اسلامي امارت د خپل ولس سره لا زیات قوي پیوند جوړوي.

## اشغال

امریکې او ملګرو یې په یوه خپلواک هیواد ، افغانستان ، نظامي تیری کړی، دلته یې په زرګونو خلک شهیدان کړي، بندیان کړي، د ولس ددیني مقدساتو بیحرمتي یی کړې ده، د خلکو کورونه، ځمکې او باغونه یی وران کړي. نو باید د دغو ټولو غمیزو مور چې اشغال دی، په لومړي قدم کې ختم شي تر څو د سولې او د افغانانو تر مینځ ټولیز تفاهم ته لاره پرانیستل شي. له بلې خوا د سیمي هیوادونه هم په افغانستان کې د خارجي قواوو له شتون سره حساسیت لري، نو د اشغال دوام د جنګ د دوام معنی لري.

دا هم حقیقت دی چې د خارجي قواوو د شتون په صورت کې، په افغانستان کې خپلواک حکومت نشي-جوړیدای، نه د هیواد خپلواکي بشپړیدای شي او نه په اسلامي او ملي مصالحو ولاړه تګلاره رامینځ ته کېدای شي. نو ځنګه چې د خارجي یرغل له امله په ګران هیواد کې، جنګ پیل شو د خارجي عسکرو وتل به ان شا الله د افغانانو ترمینځ د سولې پیلامه وي. افغانانو ته به فرصت په لاس ورشي چې په خپلو کې په مشترکاتو را ټول شي او یو افغان شموله اسلامي نظام رامینځ ته کړي.

## افغانان څه غواړي؟

افغانان په دین او وطن مین خلک دي . له سکندر څخه نیولې بیا د امریکي تر ننني یرغل پورې چا چې د دوی

په هیواد، په اسلامي او ملي ارزښتونو یرغل کړی ، دوی یې په مال او سر مقابلې ته راوتلي دي . اوس هم د خپلو حقوقو څخه دفاع چې زمونږ د ولس اسلامي، انساني او نړیوال منل شوی حق دی ، په ښه توګه ترسره کوي. افغانان د نړۍ په هیڅ ګوټ کې د کوم حکومت او یا ولس په خلاف په تخریبي اعمالو کې ملوث نه دي بلکې نورو د دوی په کور اوټاټوبي برید کړی دی.

افغانان د متقابل احترام اصول مني او د ژوند په اقتصادي، تعلیمي ، اجتماعي او کلتوري برخو کې د همکارۍ غوښتونکي دي. او له خپلو رهبرانو څخه هم غواړي چې د خپلواک، واحد، نه تجزیه کېدونکي، سوله ایز او اسلامي هیواد افغانستان حیثیت لپاره مشترکې هڅې وکړي. یو داسې نظام چې د مجاهدینو د قربانیو ثمره وي، د انصاف، ثبات، پرمختګ، اقتصادي سوکالۍ او ښیرازۍ، د اسلامي اصولو او افغاني عنعناتو په چوکاټ کې د ښځو او نارینه وو لپاره د تعلیم حق او د بیان آزادي پکې موجوده وي ، د یتیمانو او ښکې پاکې او د ولس په زخمونو مرهم کښېږدي. یو داسې اسلامي نظام رامینځ ته کړي چې ټول قومونه ځان پکښې وویني. د افغانستان د بیا رغونې او پرمختګ لپاره کار وشي او د اشغال په ختمولو سره دغه تحمیلي جنګ ختم کړي. د اسلامی امارت ټولې هلې ځلې د پورتنیو اهدافو د تحقق لپاره دي.

باید ووایو زمونږ د هیواد اشغال د ټولو غمیزو مور ده. د افغانستان ستونزه د غیر اسلامي او د غیرقانوني تړونونو په لاسلیکولو نه هوارېږي بلکې دغه ډول تړونونه په افغانستان کې د سولې په لاره کې خنډونه ایجادوي. د سولې لپاره باید د شخصي او ګوندي ګټو پر ځای عام مصلحتونه او ملي ګټې مقدمې وګڼل شي دا ځکه چې د دغو صفاتو په شتون کې سوله راځي، نه د خدعې، حربې او زورواکۍ له لارې.

زمونږ په نظر، ولس له خپلو مشرانو څخه غواړي چې تر هرڅه لومړی د سولې لپاره کلکه اراده او ژمنتیا ولري. منفی تبلیغات ودرول شي، د سولې په اړه موقف واضح وي، نه د تېر په شان مبهم او مجهول موقف، چې کله یو څه وایي او کله بل څه.

## سوله او ملي پخلاینه

سوله د هر ولس او هیواد او په مجموع کې د هر انسان لومړۍ اړتیا ده. د سولې پرته آرام ژوند او اقتصادي، تعلیمي، فرهنګي ، اجتماعي او سیاسي پرمختګ ناشونی دی. نو ظاهره ده څوک چې د خپل ولس له ښیرازۍ ، پرمختګ او آرامی سره مینه لری، هغه به سوله غواړي، لاکن سوله یوازې په ویناوو او شعارونو مینځ ته نه راځي بلکې کلکې ارادی او ښکاره عمل ته اړتیا لري. هر چیرې چی د ولسونو څخه د آزادۍ حق واخیستل شي، د انصاف او حق ځای ظلم او بې انصافي ونیسي، د کمزوري حق په زور تر پښو لاندې شي، حق ته ناحق او ناحق ته حق ووایي، ظاهره ده چې هلته به سوله له مینځه ځي. تر ټولو د مخه باید هغه عوامل له مینځه لاړشي چې د سولې د له مینځه تګ باعث ګرځیدلي دي.

زمونږ په ګران هیواد کې اشغال د سولې د مخنیوي یو ستر عامل دی. همدا راز، زورواکي بې انصافي، د سالم نظام نه شتون، تر مختلفو نومونو لاندې د بیګناه افغانانو نیول او له محاکمې پرته په زندانونو کې اچول، شکنجه کول، شپنې بریدونه ، په نړیواله توګه د اسلامي امارت د مشرانو او

اعضاوو په خلاف ظالمانه تور لیست او جایزه لیست جوړول او جاري ساتل، د هیواد پرګنې له محرومیت او بیوزلۍ سره مخ کول او داسې نور هغه عوامل دي، چې د سولې په مخ کې خنډونه جوړوي. د دې خنډونو په له مینځه تلو سره افغانان په اسلامي او ملي مصالحو را ټولیدی شي او په هیواد کې د دائمي سولې لپاره لاره پرانستل کېدی شي.

دا هم ضروري ده چې د سولې او روغې جوړې پروسه باید داسې عناصر پرمخ بوزي چې د سولې په تقدس باور ولري. په هیواد کې د مخلصو مصلحینو په نوم مشهور وي، د سولې تامین ته د یوه اساسي ضرورت په سترګه ګوري، نه دا چې د بهرنیانو د یوه فرمایشي دستور یا پروژې په حیث یې ومني. بلکې د دې برعکس، سوله د افغانانو د آرامۍ او آبادۍ لپاره مهمه اړتیا وبولی. همدا راز، سولې ته د جګړې د کمین په سترګه هم و نه کتل شي چې هر لوری د بل د ماتې په انتظار پکې ناست وي، بلکې د خپلو اسلامي او ملي مشترکو اهدافو او د ولس د آرامۍ د ترلاسه کولو لپاره اساسي بنسټ وګڼل شي. متاسفانه په تیر وخت کې داسې بیلګې شته چې سولې ته د ضرورت په ځای د یوه تاکتیک په سترګه کتل شوي دي. سوله هغه وخت مینځ ته راځي چې د جنګ د دوام اسبابو ته چې د جګړې سکروټې تازه ساتي، د پای ټکې کښیښودل شي.

باید ووایو د سولې د مخنیوي لپاره داخلي عوامل هم شته او خارجي هم. د سولې د مخنیوي په خارجي عواملو کې امریکایان او ورسره ملګری یې باید د افغان ولس اجتماعي ارادې ته غاړه کښېږدي، د زور له تګلارې سره مخه ښه وکړي او خپلې ټولې قواوې له افغانستان څخه وباسي.

د تروریزم بې بنیاده تورونه چې له اسلامي امارت هغه سره هیڅ تړاو نلري، نه دا چې د سولې په مخ کې خنډ دی، بلکې دغه شان تبلیغات ، د جنګ لمبو ته لمن وهي. همدا راز، سولې ته د رسیدو لپاره د یوه مهم ابتدائي ضرورت په توګه ، اسلامي امارت ته حق ورکړل شي چې خپل غږ پخپله ژبه نړۍ ته ورسوي. د نړۍ څخه واوري او نړۍ ته هم خپله خبره وکړي.

د داخلي عواملو په اړه باید ووایو، متاسفانه هر کله چې اسلامي امارت د سولې په لور قدم ایښی، په مقابل کې د ستراتژیک تړون، امنیتي تړون په نوم عملا د سولې مخه نیول شوې ده. د سولې د تخریب لپاره بې اساسه او مغرضانه تبلیغات شوي، په یوه او بله پلمه د سولې په وړاندې خنډونه جوړ شوي دي. د کابل ادارې له خوا داسې اقدامات شوي چې هم د سولې پروسه ناکامه کړي او هم د دوی په ګمان څوک یې د سولې ضد ونه بولي.

له اسلامی امارت سره د خبرو په ځای د ګاونډیو هیوادونو سره د خبرو پیشنهادونه شوي او یا کله چې په لومړي ځل، په قطر کې د سولې د خبرو لپاره د دفتر د خلاصیدو آوازې شوې، نو د کابل د هغه وخت ادارې خپل سفیر له دوحې څخه کابل ته وغوښت او بیا کله چې په قطر کې د اسلامي امارت له خوا د سولې د خبرو لپاره دفتر پرانیستل شو نو د کابل ادارې ورسره مخالفت څرګند کړ. د سولې ضد، منفي او سلیقوي تبلیغاتو ته یې زور ورکړ.

باید ووایو چې په مجموع کې سوله یو مشترک مسئولیت دی، او حقدار ته د حق رسیدو لاره او په هیواد کې د ښیرازۍ او آرامۍ کړکۍ ده.

## دفتر

د خبرو لپاره ځای او د ارتباط محل چې د دفتر په شکل کې وي، ضرورت دی. اوس د خبرو د ځای په توګه د اسلامی امارت ښکاره ادرس چې يو ابتدايي ضرورت دی نشته. بايد ووايو د سولې اړوند منظم مجلسونه يوازې د دفتر په شتون کې ترسره کېدی شي . دفتر د دې لپاره هم ضرور دی چې د سولې اړوند مطبوعاتي بيانونه ورکړي، د خلکو پوښتنوته ځواب ووايي او انديښنې يې ليرې کړي.

مونږ وينو چې په دې وروستيو وختونو کې د دفتر د نه موجوديت له امله، د سولې په اړه ځينې ضد و نقيض راپورونه خپاره شول چې حقيقت يې نه درلود. خلکو ته يې يو لړ تشويشونه او پوښتنې پيدا کړې. دغه ډول تبليغات نه دا چې مغرضانه افواهات دي، بلکې غوارې د سولې بهير ټکنی کړي او په خلکو ناوړه رواني اثر واچوي. که دفتر واى، نو هلته به مسؤول وياند موجود و، دغه شان پوښتنو ته به يې کما حقه ځواب ورکاوه او د بې اساسه او مغرضانه افواهاتو مخه به يې نيوله.

## تورليست:

دا يو بې بنياده او ړوند ليست دی. پدې کې داسې کسان هم شامل دي چې له اسلامي امارت سره هيڅ تړاو نلري، ځينې يې د کابل په اداره کې دي، او ځينې داسې کسان دي چې اوس وفات شوي خو په ليست کې موجود دي. د سولې پروسه او تورليست دوه متضاد مفاهيم دي، له يوه او بل سره اړخ نه لګوي نو په کار ده چې تورليست او د جايزې ليست ختم شي.

دا هم ضروري ده چې د سولې دواړه خواوې په آزاده فضا کې او د هر ډول فشار پرته د سولې پروسه پرمخ بوزي ، نه داچې يو لوری په تور ليست کې وي، آزاد سفر نشي-کولی، هر وخت د تعقيب لاندې وي، او بل لوری آزادي ولري او د تور ليست کارت له ځان سره ګرځوي ، هر وخت چې وغواړي د فشار په توګه يې استعمال کړي. دغه بې انډوله پروسه نه پرمخ تلی شي او نه مطلوبه نتيجه ورکول.

## ګاونډي هيوادونه ، سوله او د خارجي قواوو وتل

په افغانستان کې سوله او د خارجي قواوو وتل يو له بل سره تړلي دي، دا ځکه چې د خارجي قواوو وتل د سولې لپاره عملي زمينه برابروي. متاسفانه ، لا تراوسه په افغاستان کې سوله راوستل د نړيوالو او سيمه ايزو لوبغاړو له خوا ديوه تاکتيک په توګه په کار اچول شوې، او د هيواد دننه د داخلي مصرف لپاره يې د خامو موادو په توګه استعمال کړې ده. لا تر اوسه، سوله د کابل اداري په پلان کې د يوې ستراتيژۍ په توګه ځای نلري، بلکې د ولس د تير ايستلو لپاره يې استعمالوي.

موږ وينو چې ځينې خواوې ګمان کوي چې د واقعي سولې په ځای به اسلامي امارت تسليمۍ ته اړ باسي .ګمان او هڅې کوي چې لومړی بايد اسلامي امارت په نظامي ډګر کې کمزوری کړي، بيا به يې د قوي دريځ څخه سولې ته مجبور کړي، خو دا يوازې ځان تير ايستل دي چې له ځمکنيو حقايقو سره اړخ نه لګوي. دا هغه زړه فارموله ده چې امريکايانو په تيرو څوارلسو کلونو کې آزمايلې، خو څه يې نه دي تر لاسه کړي. په دې ډول وينو چې لا تر اوسه د کابل د ادارې په تګلاره کې اساسی بدلون نه دی راغلی، بلکې هماغه د سولې ضد ، د اشغال او دښمنۍ تګلاره تعقيبوي.

د سولې لپاره پخې ارادې او په واقعیتونو ولاړې ستراتیژۍ ته اړتیا ده نه داچې په دې اړه د سهار وینا او عمل یې د ماښام له وینا او عمل څخه توپیر ولري، لکه څنګه چې په تیره لسیزه کې مونږ ددغه شان بیلګو شاهدان وو.

همداراز، نړیوال او ګاونډي هیوادونه باید د افغانستان په سوله او ثبات کې مخلصانه کوشش وکړي. افغانان د نړۍ د نورو انسانانو په شان حق لري چې خپلواک او ښیرازه هیواد ولري او د خپلو اسلامي او ملي ارزښتونو په اساس نظام رامینځ ته کړي. دغه کار د نړۍ او ګاونډیو هیوادونو د امنیت او پر مختګ لپاره هم ښې پایلې او ګټې لري.

**اساسي قانون**

په اوسنۍ نړۍ کې هره واکمني او حکومتي نظام د خپلو کورنیو او بهرنیو چارو د تنظیم او سمون لپاره یو بشپړ او څرګند قانون ته ضرورت لري، ترڅو د ولس لپاره د مترقي او سوکاله ژوند لاره هواره شي او د قانون په چوکاټ کې هر کس خپله دنده په سمه توګه وپیژني. اساسي قانون د هر هیواد لپاره مبرم ضرورت دی؛ ځکه چې له هغه پرته د ولس او هیواد د پرمختګ چارې له ګڼو ستونزو او ګډوډیو سره مخامخ کېږي. د اساسي قانون له لارې د افغانستان د هر وګړي شخصي، مدني او سیاسي حقوق تنظیمېږي، اساسي قانون به ورونو قومونو ته له تعصب او تبعیض پرته عادلانه حقوق ورکړي، د حکومت او ولس په مینځ کې به د اړیکو څرنګوالی روښانه کړي، د حکومتي درې ګونو قواوو پر توازن به رڼا واچوي، د حکومت ډول، تشکیلات او واک به مشخص کړي، په مجموع کې به د افغانستان د کورني او بهرني سیاست په اړه د افغان ولس او نړیوالو تائید ترلاسه کړي.

له همدې امله اسلامي امارت د خپل ګران هیواد او غیور ولس د پرمختګ ، هوسا ژوند او د چارو د بهبود لپاره یو داسې اساسي قانون ضرور بولي چې د اسلام د مبارک دین د اصولو، ملي ګټو ، تاریخي ویاړونو او ټولنیز عدالت پر بنسټ ولاړ وي، انساني کرامت ، ملي ارزښتونو او بشري حقوقو ته ژمن وي، د هیواد د ځمکنۍ بشپړتیا او د ټولو هیوادوالو د ټولو حقوقو ضمانت وکړای شي، او هیڅ داسې ماده یا بند به ځای پکښې ونلري چې د اسلامي اصولو، ملي ګټو او افغاني عنعناتو پرضد وي. د اساسي قانون له برکته به په راتلونکي حکومت کې ، د سیاسي قدرت د توازن او په حکومت کې د ټولو افغاني اړخونو د اشتراک لپاره زمینه برابره شي.

موږ په زغرده وایو چې د اساسي قانون مسوده به د حریت په آزاده فضا کې د افغاني پوهانو لخوا ترتیبیږي ، بیا به ولس ته د تائید لپاره وړاندې کېږي، د افغانستان موجوده اساسي قانون ځکه د اعتبار وړ نه دی چې د غرب څخه کاپي شوی، او د اشغالګرو د بي ۵۲ ډوله جنګي الوتکو تر سیوري لاندې جوړ شوی دی، مواد یې پخپلو کې متضاد اومبهم دي او د افغانستان په مسلمانې ټولنې باندې تپل شوی دی.

**د افغانستان د اسلامی امارت سیاسی، اجتماعی، اقتصادی او کلتوری لرلید.**

د اسلامي امارت اعضاء د ولس له مینځه راپورته شوي او د ولس په مینځ کې اوسي . د ولس د اسلامي او ملي ارمانونو د تحقق لپاره یې تل عملا قرباني ورکړې، تر

خو يو سوكاله اسلامي افغانستان ولرو، ولس مو په خپلواک هيواد کې ساه واخلي او د اسلامي او ملي اصولو په رڼا کې اقتصادي، اجتماعي، کلتوري او سياسي چارې تنظيم کړو.

د دې علاوه ، اسلامي امارت د ژوند په ټولو برخو کې د ښځو ټولو هغو حقوقو ته ځان ژمن بولي کوم چې د اسلام مبارک دين ورکړي دي، ښځه په اسلام کې د خاوند د اختيار حق لري، د ملکيت حق لري، د ميراث حق لري، د علم او کار حق لري، اسلامي امارت به د ښځو دغه حقوق په داسې ډول خوندي کړي چې نه د هغوی روا حقوق تر پښو لاندې شي او نه يې انساني کرامت او اسلامي ارزښت له ګواښ سره مخ شي.

اسلامي امارت د عام المنفعه تاسيساتو جوړول او ساتل د اسلامي نظام لپاره يو مبرم ضرورت بولي. پلونه ، تونلونه ، د اوبو بندونه، د اوبه خور سيستمونه، بريښنا کوټونه د بريښنا د انتقال مراکز، د کانونو د استخراج ، د نفتو د تصفيې مراکز او سامان آلات يې، تعليمي ادارې، مدرسې، مساجد، ښوونځي ، پوهنتونونه ، صحي مراکز، کلينيکونه، روغتونونه او داسې نور عام المنفعه ځايونه اسلامي امارت د ولس مشترک مال ګني. او ساتنه يې خپله وجيبه بولي. د اسلامي امارت مشر عاليقدر اميرالمؤمنين حفظه الله تعالی پخپل اختريزو پيغامانوکې تل دخلکو دسر، مال ، او عزت په ساتنه ، د ملکي تلفاتو په مخنيوي او عامه تاسيساتو په ژغورنه او ساتنه ټينګار کړی دی. همدا راز، اسلامي امارت ددښمن د تبليغاتو په خلاف ، د واک په هکله د انحصار پاليسي نلري بلکې پدې باوري دی چې افغانستان د ټولو افغانانو کور دی . څنګه چې ساتنه يې د ټولو مشترک مسئوليت دی، همداراز په آبادۍ کې يې هم ټول د ګډون حق لري.

**سوله او پخلاينه اود نړيوالې ټولنې مرسته**

ترټولو د مخه نړيوال بايد د افغانانو ټول مشروع حقوق ومني، چې په هغو کې د خپل هيواد ، ولس او عقايدو څخه د دفاع حق دی، کوم څه چې افغان مجاهد ولس يې همدا اوس ترسره کوي. د تروريزم ترنامه لاندې ډرامې ته د پای ټکی کښېږدي. دا به د نړيوالو په ګټه وي چې په افغانستان کې د سولې په راوستلو کې بيطرفانه رول ولوبوي او افغانان د خپلو استعماري اهدافو لپاره قربان نکړي.

هيڅ څوک نشي کولی چې په ولسونو کې د خپلواکۍ روحيه د وسلو په زور مړه کړي، بلکې څومره چې ولس ځپل کېږي ، د قربانۍ روحيه يې قوي کېږي، او د مقاومت اراده يې لوړيږي. نړيواله ټولنه څومره چې په سوله ايز ژوند او دوستۍ کې لاسته راوړنه درلودلی شي هومره د افغانانو سره په دښمنۍ کې نشي ترلاسه کولی.

د افغانستان اسلامي امارت د يوې پاليسۍ په توګه يو ځل بيا څرګندوي چې نه غواړي نورو ته ضرر ورسوي، او نه بل چا ته اجازه ورکوي چې د افغانستان خاوره د چا په خلاف استعمال کړي، غواړي د ولس د ښيرازۍ په خاطر په ټولو برخو کې د ګاونډيانو په شمول، د نړۍ د ټولو هيوادونو سره همکاري ولري او په افغانستان کې د سولې په راوستلو کې د هر چا د مخلصانه هڅو هر کلی کوي.

والسلام عليکم ورحمة الله وبرکاته

د افغانستان اسلامی امارت

۱۴۳۶/۷/۱۳هج ۲۰۱۵/۵/۲م

# د هیواد

# په شمال کې د عزم څپې

حبیب مجاهد

د روان ۱۴۳۶ هـ ق کال جهادي عملیات چې د عزم په نامه نومول شوي د اسلامي امارت د رهبري شورى د امر سره سم په درست هیواد کې د رجب د میاشتې په پنځمه نېټه پیل شول، د رهبري شورا په اعلامیه کې د دې عملیاتو د تسمیې د وجهې او د پیل د نېټې د ټاکلو په اړه راغلي :
(دعزم نوم او د رجب پنځمه نېټه د دې تفاؤل له مخې انتخاب شوه چې عزم محکمې ارادې ته وايي او الله تعالى خپل هغه پیغمبران چې د دښمن په مقابل کې یې قوي استقامت کړی دی اولو العزم پیغمبران بللي (فاصبر كَمَا صَبَرَ أُولُو الْعَزْمِ مِنَ الرُّسُلِ ...الاية) الاحقاف ۳۵. امید دی چې الله تعالى به د دې عملیاتو په لړ کې د کفر او فسق په وړاندې د مسلمان اولس جهادي عزم نور هم مضبوط کړي او څرنګه چې د عزم په نامه د عملیاتو د پیل ورځ د رجب پنځمه نېټه ټاکل شوې، دا ورځ د هجرت په پنځلسم کال د یرموک په معرکه کې د مسلمانانو د تاریخي فتحې ورځ او د غرب د کفري لښکرو د عبرتناک شکست نېټه ده د الله تعالى له درباره هیله من یو چې سږني عملیات هم په وطن د راغلیو کفارو لپاره د مرګوني ګوزار په حیث ثابت کړي).

د عزم عملیاتو له پیل سره په درست هیواد کې د مجاهدینو لخوا د اشغالګرو په مراکزو او د هغوی د مزدورانو په ځالو جهادي بریدونه پیل شول، د عملیاتو په لومړۍ ورځ په درست هیواد کې د مجاهدینو لخوا په دښمن څه کم دری نیم سوه حملې ترسره شوې چې دښمن ته په کې درانه تلفات ورسیدل، له لومړۍ ورځې وروسته په نورو ورځو کې هم په دښمن بریدونو زور واخیست، د روزګان امنیه قومندان او د کندهار د امنیه قومندان د مرستیال غوندې د دښمن لوړرتبه چارواکي په چریکي بریدونو کې له منځه لاړل او د بګرام د هوايي اډې غوندې د دښمن مهم مراکز تر هدفمندو توغندیزو بریدونو لاندې ونیول شول.

عزم عملیات که څه هم په درست هیواد په پوره شدت روان و، خو لږترلږه په لومړیو ورځو کې د دې عملیاتو د ثقل نقطه د هیواد شمال او شمال ختیځې سیمې وې، د عزم عملیاتو په لومړۍ اونۍ کې د هیواد په شمال کې د فاریاب، بغلان، کندز او بدخشان په ولایاتو کې مجاهدینو د پام وړ لاسته راوړنې درلودلې او پراخې سیمې یې د دښمن له شتون څخه تصفیه کړې دي.

په کندز ولایت کې فاتحانه جهادي بریدونه د رجب په شپږمه نېټه پیل شول، مجاهدینو په دې ورځ د کندز مرکز مربوط د ګورتیپې پراخه سیمه په مکمله توګه فتحه او د دښمن ۲۱ پوستې یې له ۵۵ اربکیانو او زیات مقدار وسلو سره ونیولې، او مجاهدین د ښار دوه کیلومترۍ ته ورسیدل، د دې پیښې په سبا مجاهدینو د همدې ولایت د امام صاحب ولسوالۍ له مرکز پرته ټوله سیمه له دښمن څخه ونیوله او ډېرې پوستې یې فتحه کړې، په ورپسې ورځو کې هم په کندز کې مجاهدینو د پام وړ پرمختګونه وکړل چې د عزم عملیاتو له پیل وروسته تر یوې هفتې پورې په کندز کې د مجاهدینو لاسته راوړنې په لاندې ډول راخلاصه کولای شو.

د عزم عملیاتو په لومړۍ اونۍ کې په کندز ولایت کې ټول ټال: ۲۳۲ عسکر، پولیس او اربکیان وژل شوي دي. ۱۴۶ تنه نور مرګوني ټپیان دي. ۵۸ اربکیان ژوندي نیول شوي. ۲۰ ټانکونه ویجاړ شوي. ۱۳ رینجر موټر له منځه تللي. ۶۵ پوستې له دښمن څخه نیول شوې دي. ۴۱ کلي د دښمن له وجود څخه پاک کړل شوي دي. ۱۲ ټانکونه، ۱۱ رینجر موټر، ۱۱ عرادي موټرسایکل، سلګونه میله وسله او زیات مقدار د ثقیله او خفیفه وسلو مهمات په غنیمت نیول شوي دي .

دغه راز د کندز په ټوله جګړه کې ۹ تنه مجاهدین شهیدان او ۱۰ تنه ټپیان شوي دي.

د کندز تر بریاوو څو ورځې وړاندې د هېواد په شمال ختیځ کې بله مهمه پېښه د بدخشان ولایت د جرم په ولسوالۍ کې د مجاهدینو فتوحات و چې څو ورځې وړاندې کورنۍ او نړیواله میډیا وغږېده او دښمن یې له سختې وارخطایي سره مخامخ کړ.

د ۲۰۱۵ میلادي کال د اپریل د میاشتې په لسمه نېټه د اسلامي امارت ۲۵۰ تنو مجاهدینو د سهار په ۴ بجو د جرم ولسوالۍ په خستک سیمه کې د دښمن د شاهین قول اردو مربوط په دریم نمبر کنډک او ملحقو پوستو باندې یې برید پیل کړ، چې د ۷ ساعته جګړې په نتیجه کې یې کنډک او د هغه مربوطې ۲۱ واړه پوستې په مکمل ډول فتحه کړې، او د دښمن ځواکونه یې له سیمې څخه تېښتې ته اړ کړل.

د دې عملیاتو په نتیجه کې د دشمن ۹۸ تنه عسکر ووژل شول او ۷۰ تنه نور ټپیان شول، مجاهدینو تر دیرش کیلومتره پورې پراخه ساحه د دښمن له نفوذ څخه ازاده کړه، په جګړه کې د دښمن ۳ زغروال موټر ۲ رینجر موټر او ۳۰ کانتینر په مکمل ډول له منځه لاړل او وسوزیدل، دغه مجاهدینو ۶ عرادې زغروال موټر، ۶ عرادې رینجر موټر، ۱ بي ام دو، ۲ بي ام یک، ۳ درازنوف، ۳ هاوان، ۳ دهشکې، او له ۱۰۰ میله زیاته مختلف النوع سپکه وسله غنیمت کړه دغه راز یې زیات مقدار مهمات هم له دښمن څخه ونیول. په دې جګړه کې د اسلامي امارت د مجاهدینو له جملې ۶ تنه شهیدان او ۷ تنه نور ټپیان شول.

د بدخشان ولایت په جرم ولسوالۍ کې د مجاهدینو دغه بریا په یاد ولایت د خپل ډول تر ټولو ستره بریا وه، چې نه یوازې د سرا و مال له اړخه دشمن ته پراخ زیان واړاوو، بلکې د دښمن په مورال او روحیاتو یې هم سخت اغیز وکړ.

دې حملې دښمن دومره وارخطاء کړ، چې له تش په نامه ولسمشر نیولې تر ولسي جرګې او اجرتي مطبوعاتو پورې یې د دښمن ټول بنسټونه ولړزول، او د وروستۍ هڅې په دود یې کوښښ پیل کړ چې په بدخشان کې د اسلامي امارت بریا د غلطو تبلیغاتو په مټ ناسمه تعبیر کړي.

د بدخشان او کندز د سترو فتحو او لاسته راوړنو غوندې په دوو نورو شمالي ولایاتو بغلان او فاریاب کې هم جهادي بریدونو زور اخیستی، د فاریاب ولایت چهلګزي ولسوالي په تیرو څو ورځو کې د سختو جګړو شاهده وه، په دې ولسوالۍ کې مجاهدین توانیدلي چې له اولس میشتو سیمو د اربکیانو ټغر ورټول او ګڼ شمیر پوستې یې په تصرف کې راولي.

همداراز د روان میلادي کال د اپریل په ۲۹ نیټه مجاهدینو د بغلان ولایت د مرکزي بغلان په سیمه کې د دښمن یو ستر بیس چې په سیمه کې یې د دشمن د عملیاتو لپاره سوق الجیشي اهمیت درلود، فتحه کړی او په کې موجود ۳۴ تنه عسکر یې وژلي او ۲۹ نور یې ټپیان کړي دي.

په دې جګړه کې د دښمن پنځه ټانګونه له منځه تللي او لوی مقدار وسلې او مهمات مجاهدینو غنیمت کړي دي، د بغلان له دې برید سره مجاهدین توانیدلي چې د مرکزي بغلان د زمانخیلو په تصرف کې راولي او د هیواد له شمال څخه د کابل په خوا په غځیدلي لاره یو ځل بیا خپل حاکمیت ټینګ کړي.

لوړ جریان د عزم عملیاتو یوازې د لومړنۍ اونۍ حال احوال دی، الله تعالی امید لارو چې عزم عملیات په راتلونکې کې هم همداسې له فتحو مالامال وساتي تر څو دغه کال له هیواد څخه د کفر او نفاق د ټغر ټولیدو کال ثابت شي.

# د حمل ۱۶مه

ليکوال م- فرهاد

نولس

کاله ورانـدي هـم همـدا میاشت او همـدا

ورځ وه چې زموږ د تاریخ یو ستر بـاب پکـې پرانیستل شـو. د خالق کائنات په دې فراخه نړۍ کې ټولې ورځې د نیکمرغـۍ او تفاؤل نـه ډکي وي ، خو هغه شيبه يې بيا بيله وي چې د محرومـو او مستضعفو ملتونو د برخليک لورى او څرک پکې ځرگند شي . پـه تيـارو او تـور تم کې تري تم ولسونه د رڼا یو څرک ويني او پـه مرسته يـې د ورک منزل پـر لاره ور برابـر شي . د نـن حمـل ١٦ م همغـه شيبه ده چې د مسلمانانو مخصوصاً د افغانانو ورک قسمت پکې وځليدی.

د اسلامي امت د انحطاط او تنزل په دې اوږده موده کې دا يـو داسي څرک ؤ چې د ريښتيني سهار په څير يې د ډېرو مړاوو اميدونو زهـرې را وسـپړلي ، شيبه پـه شـيبه يـې د لا غوړيـدو ارزوگـاني ورسره ژوندۍ شوي . خو حيف چې ورسره هم مهاله يې د رژيدلو په طمـع د خزان ظالمي او خونخواري سيلۍ هم په چليدو شوي.

د افغانستان سپيڅلې او تاريخسازه جغرافيه چې د لومړيو پيړيو نه د اسلام مقدس توغ پکې اوچت شوی ؛ کله يې هـم مسـلمانانو د يـو کامل ، خپلواک ، بسيا او سوچه اسلامي واکمنۍ په سيوري کې د آرام ساه اخيستي نه ده . تل د يو شـمېر نـا اهلـه بنـدگانو د شومو ارادو او بدو کړنو ښکار سوي دي.

د ثور د خونريزو انقلابيانو له لاسه خـو يـې بـدمرغۍ نـوري هـم سيوا شوي . چې ورپسې د شر او فساد ټوپکي آنارشيزم سر راپورته کـړ ، پر افغانانو يوه بله تربـمـي راغلـه . لـه ښکـه مرغـه چـې ناځاپـه يـې فريـاد واوريـدل شـو او د تـور پټکـي ، سـپينو جـامو طـالبي قافلـه را ځرگنده شوه ، د امن او سولې شمع يې اوچته کړه ، د تربـمـيو پـدل يـې مات کړ . د سپيدو اميدونه را وټوکيدل ، ولسونو د سپين سهار پـه تمـه سرونه را اوچت کړل ، د قافلې لارويان شول.

د۱۳۷۵م کـال د حمـل ١٦مــه شــوه ، د څــه دپاســه يــونيم زر روحانيون (دينـي عالمـان) را ټـول شـول ، د مسـلمانانو د قـافلې شرعـي سـالار يـې وټاکـه . اميرالمـؤمنين ملامحمـدعمر مجاهـد حفظه الله ته يې ستر امانت ورلـه غـاړې کـړ . دا يـوه داسي شيبه وه چې په ريښتيا يې د تاريخ لوری بدل کړ . خکه چې له پيړيو او قرنونو وروسته موږ د داسي صحنې شاهدان و اوسيدلو چې د يـو ريښـتيني ديني قشر لخوا، په شرعي توگه د مسلمانانو شرعي امير انتخاب مومي . او هغه بيا داسي فوق العاده کـړني تـرسره کـوي چـې انجـامول يـې د ډېرو قدرتمندانو په اند ناشونی بريښيده . مثالي امن ، ثبـات ، عـدالت ، حکومتـداري ، قضـاء ، حـدود ، اجرائيـه ، تقنـين ، او برلاسـی نظـام قانمول . ملوک الطوائفي ، مخدرات ، بې کچـې وسلې ، نـا انصافي او د ظلم حکمراني ورک کول . يې له سترو برياوو څخه وو.

د حمل پر ١٦مه جوړې غونډې ته د اميرالمؤمنين لـومړۍ خـبره دا وه چې زه د الله تعالی يو ناتوانه بنده يم ، د توکـل محـض پـه مـټ مې دالله د رضا او د خپل خوريدلي ولس د ښيگـېني پـه موخـه ، دا لاره اخيستي وه چې تاسو علماؤ راباندي بوج نور هم زيـات کـړ . زه د دې توان نلرم ، تاسـو بـه مـې ملا تـړئ ، يـوازي بـه مـي نـه پريږدئ ، پـه تيروتنـه بـه مـې را نيسـئ ، ترڅـو د قيامـت پـه ورځ الله تعـالی تـه د خواب پر مهال شرمنده نه يو.

له همدې ځايه وه چې نوموړې قافله د نوموړي امير پـه قيـادت کې د بې پناه الهي ازمايښتونو په موجونو کې بيا هم ترننه پوري ثابت قدم پاتې شوه ، او د هر ډول کفري او طاغوتي طوفانونو په وړاندي يـې سر تسليم خم نکړ . او الله تعالی د خپل لامتناهي فضل و مرحمت پـه سيوري کې وسـاتل ، چـې ننـني کفـري يرغلگـرو يـې پـه مقابـل کـې شرموونکی شکست وخوړ او مجاهـدينو تـه يـې تلپـاتي ، خـارق العـاده اوتاريخي فتح ورنصيب کړه.

حسن مومند

## دایران له لورې پرسعودي دحملې ګواښ

# او دجنګ خطرناک اړخونه

دایرېل په ۲۱مې نېټې به محترمولوستوالو له نړیوالورسنیونه سعودي عربستان ته دایران دیوه ورځ وړاندې کړوګواښونوپه اړه مرکې اوتبصرې اورېدلي وي ؛ دایران دځمکنیوقواوو مشراحمدرضابوروستان ګواښ کړیدی چې که سعودي عربستان په یمن کې دحوثیانوپرضد روان هوایې بریدونه وندرول نوتهران به دریاض پرضدله فوځي اقدام نه مخ وانه ړوي.

د,,العالم،، نومي تلویزون (چې له ایران نه په عربۍ ژبې کې خپرونې کوي) سره په مرکې بوروستان ویلي دي چې هېوادېې دسعودي سره حالات خرابول نه غواړي خوسعودي هم باید په یمن کې دحوثیانوپرضد روان فوځي عملیات ودروي ؛ که سعودي دحوثیانوپرضدعملیات وندرول نودجنګ دایره به پراخه شي ؛بوروستان داشارې اوکنایې نه کار وانخست بلکې په صریحو او روښانه ټکو یې وویل :که پریمن دسعودي حملې وندرېدې نودایران طیارې به دسعودي خاوره بمبارکړي .

دسعودي ددفاعي صلاحیت په اړه علي رضابوروستان وویل: دسعودي فوځ دجنګ هیڅ تجربه نه لري اودیوې بې تجربې جګړه مارې ډلې نه یې حیثیت زیات ندی نودریاض اداره ته غوره داده چې په یمن کې فوځي عملیات بند اودمسئلې سیاسي حل راوباسي ګیني دجنګ لمن ترسعودي هم ورخپرېدای شي ؛ هغه زیاته کړه چې تهران دسعودي سره دجنګ غوښتونکی ندی خودا اوس پرسعودي ده چې جنګ ته طول ورکوي اوکه ودروي یې ؛ که موږ اړشولو نودسعودي په خاورې کې به له فوځي عملیاتودرېغ ونکړو.

علي رضا بوروستان ضمناً حوثي ملېشو اودمعزول ولسمشرعلي عبدالله صالح ملېشو ته پرسعودي دحملوترغیب ورکړ او ویې ویل چې حوثي ملېشې اودعلي عبدالله صالح وفاداران هم پرسعودي دحملو کولوتوان لري.

دعلي رضانه وړاندې دپاسداران انقلاب مرستیال مشرجنرال حسین سلامي هم ویلي ووچې حوثیانوسره داسې توغندي شته چې دسعودي هر ښارپرې په نښه کولای شي نوچې سعودي پردوئ حملې جاري ساتي دوئ هم باید په سعودي حملې وکړي .

که په ښکاره وکتل شي دیمن جنګ ورو ورو خطرناکې مرحلې ته ورننوځي ؛ یولورته دسعودي له لورې پرحوثي باغیانودحملولړۍ روانه ده اوسعودي ټینګارکوي چې ترڅوحوثیانووسلې په ځمکه نه وي ایښې ترهغې به حملې روانې وي ؛سعودي هڅې کوي چې په یمن کې راپورته شوې دحوثیانو بغاوت په یمن کې دننه له منځه ولاړشي اوبدې اغېزې یې له سرحدونوراواوړي اوبل لورته ایران په سعودي دحملو کولو ګواښونه کوي؛ دحوثي باغیانوسره دمرستو،فوځي روزنې اوجنګي وسایلو دورکولودتورونو خبرې اوس شاته پاتې شویدي خبره دمخامخ مقابل لورې دجوړېدلو اوښه په روښانوټکود ګواښونو ورکولوترحده رسېدلې ده ؛ دایران دولت خبره دومره خطرناک حدته رسولې ده چې ایرانیانوته اجازه نه ورکوي ترڅوسعودي ته دعمرې اداکولو په موخه سفروکړي ؛ دایران اوسعودي خپلمنځي روابط چې اوس دیمن دروان جنګ په سرڅېر خراب شویدي دایران دا اقدام درامنځته شوي بد حالت په بل اور دتېلو پاشلونه کم ندي.

ددې جنګ بل خطرناک اړخ دادی چې اوس داسې نښې راښکاره شویدي چې داجنګ له سیمې وځي اونړیوال زبرځواکونه پکې دخپلوموخودترلاسه کولولپاره دیوبل سره ښکرپه ښکر کېدونکي دي ؛ امریکا لا له وړاندې اعلان کړی چې دسعودي اومتحدینوسره به یې داهدافودتعین په اړه په معلوماتو ورکولو کې مرسته کوي اوپه هواکې به یې جنګي طیاروته دتېلوورکولو اسانتیا برابره کړي .

بـل لورتـه روسـې هـم دايـران نـه دتوغنـديو ورکولوپـه اړه لګېدلي بنديزونه لـرى کړيـدي ؛ دروسـې اوايـران تـرمنځ دايـس ۳۰۰ډوله توغندوترون له وړاندې نه شتون درلودلوخوپه ۲۰۱۰ کـې پرايران دلويديځ له لورې دبنديزونولګېـدلو لـه املـه روسـې هـم ايران ته ددې سستم له ورکولوانکـارکړى وچـې داتـومي پروګـرام پرسردايـران اولويـديځ تـرمنځ داوسـنوکاميابو مذاکراتونـه پـس روسې هم دابنديزختم کړ.

دروسې دا اقدامات هم له دې امله چې دجنګ سره يې تړاو دى خطرناک دي خو له دې زيات خطرناک اقـدام يـې خلـيج تـه دسمندري جنګي جازونو راوستل اوديمن حدودوته يې راداخـلول دي چـې پـدې دجنـګ ددائـرې دوسـعت مونـدنې اودروسـې اوامريکا دمخامخ کېدلو امکانات زيات شويدي.

لــه دې خوانکارنشيــ کېـدای چــې ســعودي دامريکالــه اتحاديانونه دى اوداهم معلومه خبره ده چې دسعودي نـه ددفـاع په نوم په ۹۰يمې لسيزې کې دامريکاراغلى قواوې لاهم پـه خپلـو نظامي اډوکې موجودې دي نودايران په نوم يوبهرنى هېـواد چـې پرسعودي دحملې ګواښ کوي امريکا يې په مقابل کې ولې نه څه وايي اونه هم څه عکس العمل ښکاره کوي ؟

دډېروخلکوسره به داسوال مطرح وي اوپدې اړه به دامريکـا دريځ حيرانونکى ګڼي خودامريکا دادريځ پـدې وخـت کـې ماتـه ښځي حيرانونکى نه ښکاري ؛سعودي که دامريکا اتحادي دى نـو ايران يې هم څه دښمن نـه بلکـې ديوسـنګر ملګـرى دى؛ دتېـرې مـارچ مياشـتې پـه وروسـتيوورځوکې چې پـه جنـوا کې امريکـا دخپلوپنځواتحاديانوپه ملتياداايراني قيـادت سره دايـران داتـومي پروګرام پرسرخبرې کولې په همدې ورځوکې دداعـش دمنګلونـه دعراق دتېلوغني ښارتکريت دويستلوپه موخـه دايـران پـه لاس جوړې شوې دبدر، قدس اواخوان حزب الله په نوم دملېشو۳ډلـې ،دايران پاسـداران انقـلاب (چـې دجنـګ مشرـي يـې دپاسـداران انقلاب مشرجنرال قسـيم سـليماني کولـه ) اوامريکـايي ځواکونـه دداعش پرضدسره اوږه په اوږه جنګېدل .

دتکريت نه دداعش دويستلو په موخه پـه تـرسره شـوي دې جنګ کې امريکا راداخلېدل دپاسداران انقلاب په خوښه شـوي و اوتـرون ورسره دبدر،قـدس اواخـوان حـزب الله پـه نـوم ددرې واړوډلوملېشومشترک وياند نعيم العبيدي کړى و؛ دشـوي تـرون پراساس امريکاپه ټول جنګ کې دپاسداران انقـلاب اويـادوعراقي ملېشو هوايي مرسته کوله چې په همدې لړ کې سهواً دامريکا پـه يوې ډرون حملې کې دپاسداران انقلاب دوه جـګ پـوړي افسـران علي يزداني اوهادي جعفري ووژل شول چې مړي يې په تهران کې خـاورو تـه وسـپارل شـول ؛ددې دواړو لوړپـوړو افسـرانوپه وژل کېدودايران مطبوعاتو ډېره غوغا جوړه کړى وه او ايله هغه مهـال يې غوغا بنده شوه چې نعيم العبيـدي وويـل: دامريکـا پـه ډرون حملې کې ددوئ وژل کېدل قصداً نه وو.

ددې دواړو افسرانوپه شمول تراوسه دعـراق جنـګ کـې لـه تورانانو نيولې ترجنرالانوپورې ۱۱لوړپوړي ايـراني فـوځي افسـران وژل شويدي.

پورته يادې شوې عراقي ملېشې هماغه ملېشـې دي چـې پـه اړه يې دملګـرو ملتونـو عمـومي منشيـ بـانکي مـون ويـلي و چـې داملېشې کومې سيمې قبضه کړي پکې دخلکوعامـه وژنـه کـوي ؛ ودانـئ دځمکـې سره برابـروي اودخپـل تسـلط لانـدې سـيموکې دخلکواختطافونه اوپرمېرمنوجنسي تېري کوي . ايران چې عـراق تـه وسـلوال اسـتوي نـو دنجـف ،کـربلا کـاظمين اودلتـه دشـتو زيارتونودساتنې خبره ورته رامخې ته کوي اوپه همدې پلمه يې په احساساتو کې راولي خونه پوهېږوچې په يمن کې بـه ايـران کـوم زيارت اوکومه کربلا پلمه کوي ؟

لنډه داچې په اوس وخـت کـې امريکادجنـګ پـه سـنګرکې دخپل ملګري ايران خفه کـول نـه غـواړي اودامريکـا تـاريخ ددې خـبرې شـاهد دى چـې دچـا خفـه کـول نـه غـواړي نوپـه ډېروسترونـاوړه کړو وړويې هم نـه يـواځې داچـې سـترګې پټـوي بلکې مرستې هم کوي اوپدې لارکې دټولې نړۍ ملامتيا اخستلوته تيارېږي چې قدم په قدم اوپه هرحالت کې داسرائيلونـه حمايـت يې ژوندۍ بېلګه ده.

دسـعودي پـه مشرـۍ کـې داتحاديانولـه لـورې دحـوثي باغيانوپرضد دمارچ په ۲۶مې نېټې دپيل شويوهوايي بريدونو چې اوس د مياشت زيات وخت شويدى اوپکې تراوسه دزرونه زيـات تنان وژل شوي اونېږدې درې نيم زره پکـې ټپيـان دي پـه اړه يـې دسـعودي فـوځ پـدې وروسـتيو کـې ادعاکولـه چـې دحوثيـانو دقوماندې مرکزونه اودتوغندواووسلوډيپوګان يې لـه منځـه وړي

دي اوپه روانوعملیاتوکې ګڼ شمېرحوثي باغیان وژل شوي اویاټپیان شویدي.

شنونکي پدې عقیده دي چې ددې ادعاګانوپه ترڅ کې سعودي خپل ولس اونړی ته داښودله چې عملیاتو یې نتیجه ورکړیده اوهدف یې ترلاسه کړیدی ؛ له دې یې موخه داوه چې عملیاتوته خاتمه ورکړي اوترڅنګ یې هدف ته دنه رسېدلو له ملامتیاهم ځان وژغوري ؛ شایدچې سعودي ورځ نیمه پس دجنګ دپای اعلان هم کړی وای خوله بده مرغه چې دایران ګواښونو سعودي یوځل بیا پرحوثیانودحملوجاري ساتلوته اړ کړترڅو ایران ته ددې څرګندونوپه مقابل کې سخت جواب ورکړي .

دیمن په داخل کې پرحوثي باغیانوحمله دسعودي د باندنۍ پالیسۍ په اړه ډېره مهمه پرېکړه وه ؛ داهم روښانه خبره ده چې دسعودي خارجه پالیسي دسعودي د شهزادګانو درایوپه اتفاق جوړېږي نوپدې پرېکړې به ټول راضي وي اوکه عبدالله ژوندی وای نوهمداسې پرېکړه به یې کوله خوداچې دادارې په سرکې شاه سلمان بن عبدالعزیز دی اوځوی یې محمدبن سلمان دفاع وزیردی نودیمن مسئله دشاه سلمان لپاره لوی امتحان اوستره ننګونه ده ؛ دسعودي دولت بیابیاداهوډ څرګندوي چې ترڅوحوثي باغیانوپه ځمکه وسله نه وي ایښي ؛ قانون ته یې سرنه وي ټیټ کړی اودیمن قانوني ولسمشربېرته دواک واګې په لاس کې نه وي اخستي ترهغې به په حوثیانوحملې رواني وي .

سعودي دپورته یادوشویوڅیزونوترلاسه کېدل دجنګ اهداف ګڼي خوکه په غوروکتل شي نوددې اهدافوترلاسه کېدل اسان کارنه ښکاري؛ نه دمنصورهادي بیا واک ته رسول اسان کاردی اونه دومره ژرحوثیان په شا کېدونکي او وسله ایښودونکي دي ؛حوثیانودسعودي په مقابل کې دکلک ودرېدلواوپه شا دنه تللوعزم ښکاره کړیدي؛دحوثیانومشرعبدالملک حوثي دخپل تلویزون سره په مرکې کې دحملې کونکوپه مقابل کې دسخت مقاومت اعلان کړیدی .

هدف مې دادی چې دحوثیانو دبغاوت په نتیجه کې په یمن کې راپورته شوي ستونزه دومره بسیطه نده لکه څنګه چې ورته کتل کېږي .

شاید دحوثیانودشورش په ځپلوسعودي وتوانېږي اومنصورهادي او طرفداران یې واک ته ورسولای شي خودحوثیانوپه مقابل کې ددې شکست خوړلونه دفاع یقیناً چې دسعودي دتوان نه وتلی خبره ده ؛ یواځې په هوایي بمبارکار نه کېږي اویمن ته دخپلوځمکنوفوځونوورننویستلوته شاید سعودي هیڅکله هم غاړه کېنږدي ځکه چې یمن ته دځمکنوفوځونودننویستلو په صورت کې دیمنیانوپه مقابل کې دسعودي فوځونودکامیابۍ چانس کم اودډېروځاني اومالي تلفاتواحتمال زیات دی چې ماضي دهمدې خبرې شاهده ده ؛ په ۲۰۰۹ کې چې داوسني دفاع وزیردتره ځوی خالدبن سلطان بن عبدالعزیز ددفاع وزیراودسعودي ځمکني فوځونه یمن ته ننوتل نو دافوځ دیمنیانوپه مقابل کې دناکامۍ سره مخامخ شوچې له امله یې خالدبن سلطان دخپلې دندې پرېښودلوته اړشو.

بل لورته دایران نه راغلی۸۵۰ ټنه وسلې اومهمات دریف هغې بندرګاه ته رسېدلې دي کومه چې دمکې مکرمې نه په ۸سوه کیلومترۍ کې پرته ده ؛حرم مکي ته دحوثیانو دومره نږدې کېدل سعودي ډېره لویه خطره اوددې خطرې له منځه وړل ډېراړین بولي خوترڅنګ یې داوږدې مودې لپاره په جنګ کې ځان اخته کول هم نه غواړي کوم چې دایران هدف دی نوځکه موږ وویل چې سعودي ددې جنګ ژرترژره ودرېدل غواړي .

دحوثیانو حالت هم اوس دادی چې جنګ ته طول ورکول نه غواړي ؛حوثیان خوله خپل لورې اوږد مقاومت ته ځانونه چمتوښکاره کوي خوددې ترڅنګ چې دروانوهوایي بریدونوله امله ډېرکمزوري شول پدې به هم پوه وي چې دهېوادپه شمال ختیځ اوسهیل لویدیځ کې دخلکودحمایت نه بې‌خي بې برخې دي چې دبریدونوله امله کمزوري کېدلواوپه هېواد کې دولس دقاطع اکثریت دحمایت نه بې برخې کېدلو دوئ هم اوس ژرجوړ جاړي ته اړکړي.

اوس پوښتنه داده چې دسعودي دکمزوري کولواوپه سیمې کې یې درول راکمولوپه موخه ایران ددې جنګ جاري ساتل غواړي اوکه نه څرنګه چې وایې رښتیایې هم ودرول غواړي ؟ اوآیادسعودي فوځ رښتیا دومره کمزوری فوځ دی چې دیوې بې تجربې جګړه ایزې ډلې نه یې حیثیت لوړندی اوآیا ایران رښتیا هم په سعودي دکامیابوحملوتوان لري ؟

دابایدومنوچې په فوځي لحاظ سعودي دایران انډول ندی اوداهم یوحقیقت دی چې په نعمتونواواسانتیاوکې روزل شوی

اوپالل شوی دسعودي فوځ دايران دفوځ په پرتله بې تجربې اوکمزوری فوځ دی خوايرا ن پدې وخت کې په هغه حالت کې هم ندی څومره چې باتې وهې ؛ ايران دامهال دشام اوعراق ددولتونونه ددفاع په جنگونوکې مصروف دی اوفوځ يې پدې دواړو هېوادونو کې دولسي پاڅونونودځپلوپه موخه عملاً په جنگ کې اخته دی ؛ ددې ترڅنگ دلبنان دحزب الله اويمن حوثيانوسره يې مرستې هم روانې دي نوپه داسې حالت کې دايران لپاره ديومستقل هېواد په مقابل کې دجنگ نوی ډگرپرانستل اسان کارندی په تېره بيادسعودي په نوم دهغه هېوادپه مقابل کې چې له دوه درې هېوادونوپرته ټوله اسلامي نړۍ يې حامي ده اوپرې کوچنۍ حمله هم ورته دزغم وړنده ؛ دسعودي سره دټولې اسلامي نړۍ همدې خواخوږۍ ته په پام سره دحزب الله پخواني عمومي منشي- الطفيلي دحوثيانوپرضد دسعودي دعملياتو حمايت کړی اوپرسعودي يې دحزبالله داوسني مشرحسن نصرالله انتقادونه ردکړيدي ؛ دترکې اطلاعاتي اژانس اناطوليه سره په مرکې کې شاغلي الطفيلي وويل:حزب الله چې دبشارالاسد داداري په حمايت کې دپاڅون کونکوپرضدجنگېږي نوبياپه کوم دليل په يمن کې ددولت پرضددبغاوت حمايت کوي ؟پرحوثيانو دسعودي دحملې په اړه داعتراضونو نه وړاندې بايد حسن نصرالله په خپل گرېوان کې ليدلي وای چې آيا هغه گينې په شام کې دبغاوت ضد ندی ؟ له نوروله شکست نه وړاندې تاشکست خوړلی دی! اوکومې خبرې چې ته دنوروپرضدکوې دغشونوکې يې دستاپر لور دي ''

دايران فوځي مشرانوخوکوښښ کړی چې سعودي ډېرکمزوری معرفي کړي ،داسې کمزوری چې ټول فوځ يې ديوې بې تجربې جگړه ماری ډلې په څېربولي خوايران له دې خبرې وړاندې بايدفکر کړی وای چې پخپله ايران څومره ځواکمن دی ؟ ايران په سوريې کې دبشارددولت دساتلواود مخالفينو دځپلولپاره څومره هڅې وکړې ؟! خونړۍ وليدل چې دبشارداردو، حزب الله اوايران درې واړه دمجاهدينوپه ځپلو ونه توانېدل بلکې په مقابل کې يې مجاهدين ورځ تربلې دومره قوي شول چې اوس دادلب او جسرالشغور په څېردلويوښارونوپه نيولو توانېږي .

داهم دياددولو وړده چې سعودي پدې توانېدلی دی چې يمن ته دايران دورتللوهوايې اوسمندري لارې ونيسي- ؛پدې تازه ورځوکې دسعودي جنگي طياروپه يمن کې دايرانۍ طيارې دکېناستلومخه ونيوله اوپدې دليل يې ورته په يمن کې دکېناستلو اجازه ورنکړه چې دکېناستلواجازه يې نه وه اخستې ؛ ايران پدې اړه ايله همدومره اعتراض وکړای شوچې دنړيوالې مرستندويه اداري سورصليب په مرستې اواجازې دايران دې طيارې په ايران کې تداوي شوي مريضان اودوايمن ته وړله چې دسعودي جنگي طياروپه داسې حال کې کېناستوته پرېښودده چې دايران اوسعودي ترمنځ يمن ته دپروازونوپه اړه تړون هم شويدی.

هو!ايران په پيل کې فکرنه کاوه چې سعودي به گينې ژربرلاسی اوحوثيان به يې په مقابل کې په لږې مودې کې ماتې وخوري نوځکه يې دجگړې طول غوښتلواوحوثيان يې ژر روغې جوړې ته نه پرېښودل ؛غوښتل يې چې سعودي په اوږدجنگ کې راښکېل کړي ترڅوپه هرلحاظ کمزوری اوسيمې کې يې رول راکم شي خواوس يې چې دسعودي جدي غبرگون اودحوثيانو زيات تلفات وليدل ؛دسعودي سره يې داسلامي نړۍ خواخوږۍ ته پام شو اوپرسعودي دحملودگواښ نه پس يې داسلامي نړۍ غبرگونونوته نظرشو نويقين ته يې پرېوته چې دجنگ دجاري پاتې کېدلو په پرتله يې ودرېدل غوره دي نوځکه ويلی شوچې ايران چې څرنگه وايې رښتياهم ددې جنگ ودرېدل غواړي.

لنډه داچې داڅوکرښې چې ليکم نودحوثيانوپرضدلاهم دسعودي حملې روانې دي خوداسې ښکاري چې اوس ددې حملوورستي مراحل دي ؛دېردې ترشاچې کومې سياسي هلې ځلې روانې دي اوس به رنگ راوړي؛ حوثيان اوس ژرترژره دجنگ ودرېدل غواړي ځکه چې ځاني تلفات ډېر ورواوښتل خوهدف ته درسېدلوهيلې يې دخاوروسره خاورې ښکاري .

خودسولې په اړه شايد دسعودي سخت موقف يوڅه خنډونه راولاړکړي ځکه چې سعودي غواړي دسولې په نتيجه کې تېردولت په ټول يمن بېرته حاکم شي ؛ حوثيانو ته په لاس کې څه پاتې نه شي اوټول خپلوزړوځايونوته ورستانه شي .

ديمن دبانډنيوچارو وزيررياض ياسين ويلي دي چې ولسمشرمنصورهادي دحوثيانواوپخواني ولسمشرعلی عبدالله صالح له لورې دسولې کړی وړانديز ردکړيدی او ويلي يې دي چې ترڅودټولوښارونونه دحوثيانوقبضه ختمه شوی نه وي ترهغې

په مذاکرات ونکړي ؛هغه زياته کړه چې ديمن ۷۰ سلنه دحوثيانو له قبضې راويستل شويده ،دحوثيانو پرضدولسي مقاومت ښه په زورکې دی اوله صنعاء اوعدن پرته يې نورله ټول يمن نه تغرورټول شويدی هغه زياته کړه چې په يمن کې دسياسي حل لپاره ډېرژرمشروطې هلې ځلي پيلېدونکی دي خومهمه داده چې حوثيان اوعلي عبدالله صالح دتشدد لارپرېږدي .

نوددې ټولو خبرونه داسې ښکاري چې په يمن کې ددې روان جنګ دپای ته رسېدوشېبې رارسېدلی دي ځکه چې دواړه اړخونه يې پای ته رسېدل غواړي خوددې جنګ دختمېدونه پس چې دلته کوم بل جنګ پيلېدونکی دی شايد هغه بياژر پای ته ونه رسېږي هغه دحوثيانواوراتلونکې امريکادوستې اداري پرضد دالقاعدې اوداعش جنګ دی ؛علي عبدالله صالح اوورپسې منصورهادي دواړو ولسمشرانوامريکاته خپل اخلاص ښکاره کړی واودالقاعده مجاهدينو دځپلوپه لارکې يې دامريکا هر حکم ته لبيک ويلی و خواوس چې له يولورې ديمن اداره له منځه تللی ده او بل لورته دحوثي قبيلې سره تړاولرونکې دشيعه ګانوهغه ډله راپورته شوې چې دالقاعدې سره يې سخته دښمني ده اوپه حرمينو دحملوګواښونه کوي نودادواړه خبرې دلته دالقاعدې اوداعش دمجاهدينو دزياتېدلواوقوي کېدلو سبب شوی ؛په دې تازه ورځوکې داعش يوه ويډيوخپره کړی چې پکې مجاهدين صنعاء ته نېږدې په يوصحراکې په عسکري تربيت کې بوخت ښکاره شويدي اومشرېې ګواښ کوي چې دحوثيانودسرونوپرې کولو اودقبضې نه يې دنيول شويوسيمودآزادولولپاره راغلي دي؛هغه ديمن دټولوسنيانونه غوښتي دي چې دحوثيانوپرضد ددوئ سره په جنګ کې برخه واخلي ؛دويډيودخپرېدانه دوه ورځې وړاندې چې دموټربم په يوبريدکې ۵حوثيان له منځه تللي وواودمارچ په ۲۰مې نېټې چې په صنعاءکې دشيعه ګانوپه يوجومات کې دچاودنې له امله ۱۴۲ تنان مړه اوتر۳۵۰تنانوپورې ټپيان شوي وودې دواړوپېښو مسئوليت داعش په غاړه اخستی و ؛ داسې ښکاري چې په راتلونکي کې به ددې مجاهدينواو حوثيانوترمنځ ډېرې سختې جګړې رامنځته شي.

ډېرشنونکې پدې عقيده دي چې له نورې نړۍ نه دلته دمجاهدينوراتلل اودلته دمجاهدينوقوي کېدل ددې سبب شوي چې امريکا اونورلويديځ هم اوس دلته دجنګ ودرېدل اودلته ديوې منظمې اداري رامنځته کېدل غواړي سره له دې چې اصل وړاندې ټول پدې نظروو چې دمنځني ختيځ سياسي جغرافې ته دتغيرورکولو په موخه امريکا، نورلويديځ اواسرائيل په ټول منځني ختيځ کې دپراخه جنګ درامنځته کولوپلان لري ؛ د ۱۱ ستمبرنه پس چې دامريکا پاليسي جوړوونکو داپرېکړه کړی وه چې دمنځني ختيځ سياسي جغرافې ته به نوی شکل ورکوي ؛ پينټاګون ,,ری شيپنګ دی مډل ايسټ ” په نوم ددې پاليسۍ لپاره نوم هم ايښی وچې دتطبيقولو لپاره يې د ۲۰۰۳کال په مارچ مياشت کې امريکاپرعراق دحملې کولونه ددې عملي اقدامات هم پيل کړي ووخو دامريکا له بده مرغه چې دلته دمجاهدينو دسخت مقاومت په نتيجه کې دسختې ناکامۍ سره مخامخ اوله دې لارې يې ددې پلان د تطبيقېدلو پلان له خاورو سره خاوری شو نوټوله توجو يې ددولتونوپرضد دولسونوراپاڅولو اوپه نتيجه کې يې دهغه څه رامنځته کولو ته ورکړه څه چې په منځني ختيځ کې رامنځته شول اوزموږله بده مرغه چې له دې لارې دپلان په تطبيقولو کې يې ترډېره حده پرمختګ هم کړی .

ددجلې اوفرات دواړوخواوو اودشام بلادو کې ددې جنګ خپل عروج ته رسولوکې خودوئ لا له وړاندې بريالېتوب ترلاسه کړيدی اودادي اوس يې دجنګ په سترډګر ديمن بدلولواوپه دې جنګ کې دسعودي اونوروعربي هېوادونودراښکېلولو له لارې دجنګ اوبد امنۍ څپې تر خيبراومدينې منورې هم راورسولې اوغواړي چې دجنګ ساحه دومره پراخه شي چې نه يواځې منځني ختيځ بلکې ټولې اسلامي نړۍ کې دفرقه ايزو شخړو يو طوفان رامنځته شي .

نوددې جنګ داورخاشاک چې دلته داوسېدونکو مسلمانانو داسې فرقه ايزتضادات دي چې هره فرقه دبلې نابودي غواړي نوشايدلاهم امريکا اسرائيل اونوره کفري نړۍ په يمن کې همدې فرقه ايزوتضاداتوته لازياته هواورکول اوله دې لارې خپلويادواهدافوته رسېدل غواړي خودا احتمال هم شته چې دمجاهدينو دمخنيوي لپاره دې دلته دجنګ دپای ته رسول وغواړي اوديوې لاسپوځې اداري په شتون کې دخپلو اهدافو دحصول هڅې وکړي .

# استفاده امریکا از مسلمانان میانه رو

میرویس انقلاب

امریکا پس از شکست نشنلزم، سوسیالیزم و سرانجام دیکتاتورها و سکولارها در سرزمین های اسلامی به این نتیجه رسید که دیگر نمی توان مستقیماً با مسلمانان و اسلام در جنگ بود. پس این بار امریکا تلاش دارد با استفاده ازمسلمانان میانه رو به جنگ خویش در سرزمین های اسلامی ادامه داده تا حضور و نفوذش را تثبیت کند. زیرا امریکا باجنگ های نظامی نتوانست جلوبیداری اسلامی را بگیرد؛ چون هرروز موج اسلام خواهی و بیداری اسلامی بیشتر از پیش افزایش یافت. بنابراین امریکا دست به جنگ فکری علیه اسلام زد تا بدین وسیله جلو "برخورد تمدن ها" را گرفته و منافع اش به تهدید مواجه نگردد. به همین علت امریکا در جهان اسلام برعلاوه جنگ نظامی، دست به جنگ فکری تحت عنوان "تسخیر دل ها و ذهن ها" زد تا از ظهور اسلام سیاسی بکاهد.

بناً امریکا به این نتیجه رسید که باید از طریق مسلمانان معتدل و مدرنست ها منافع و تسلط خود را در سرزمین های اسلامی حفظ کند.از آنجائی که امریکا در حال حاضر با اسلام به انواع مختلف و بهانه های متعدد در جنگ است، سیاسیون و

ستراتیژیست های امریکائی برای برخورد با جهان اسلام در آینده، مسلمانان را به ٤ دسته تقسیم نمودهاند:

۱- بنیادگرایان، که با امریکا و ارزش های امریکائی-غربی مخالف اند.

۲- سنت گرایان، که خواهان جامعه ای محافظه کارانه و با مدرنته غربی بد گمانند.

۳- مدرنست ها (میانه روها)، که خواهان اسلام امریکائی-اروپائی می باشند که با افکار ونظام های غربی مشکلی ندارند.

٤- سکولاران، که معتقد به جدائی دین از سیاست هستند.

بنابراین ستراتیژیست های امریکائی در پی آنند تا از طریق برخی مسلمانان میانه رو و گروه های غیر مبدائی، اسلامی سیاسی را ضربه زنند. از اینرو امریکا مسلمانان معتدل را شناسائی و برای آنها امکانات مختلف را فراهم نمود تابرضد مسلمانانی که با امریکا مخالف اند ایستادگی کنند. حالا امریکا درک کرده که گروه های که اسلام سیاسی را می خواهند بزرگترین تهدید برای نظام سرمایه داری می باشند. پس امریکا و غرب بعد از ناکامی های شان در پی آن شدند تاستراتیژی جدیدی را برای تعامل با جهان اسلام در دهه های آینده ترسیم کنند.

در واقع ستراتیژیست های امریکائی درخصوص مبارزه با اسلام به دو دسته تقسیم می شوند: نخست کسانی که خواهان مبارزه مستقیم و رو در رو با اسلام اند. منجمله جمهوری خواهان به این شیوهای مبارزه معتقدند؛ به عنوان مثال: زمانی که جورج بوش به قدرت رسید، مستقیماً از جنگ صلیبی با اسلام سخن گفت و این کار بوش وجهه سیاسی امریکا در جهان اسلام را ضربه زد و بسیاری از مسلمانان تظاهرات گسترده ای

را در سراسر دنیای اسلام به راه انداختند. در آن زمان، برخی از سیاسیون امریکائی این سخن بوش را خطری برای امریکا عنوان کردند .

دسته دوم، دموکرات ها می باشند، آنها طرفدار جنگ غیرمستقیم با اسلام هستند؛ زیرا بسیاری از دموکرات ها به این باورند که ما در جنگ مستقیم با اسلام هرگز پیروز نمی شویم و تاهنوز هیچ قدرتی در جنگ رو در رو با اسلام، پیروز نشده است. زمانیکه اوباما به قدرت رسید با وجود اینکه جنگ های نظامی امریکا علیه اسلام ادامه داشت، روی پالیسی های مبارزه غیرمستقیم علیه اسلام تأکید ورزید و همچو پروژه ها را تقویت کرد. چنانچه وی به جنگ فکری (تسخیر دل ها و ذهن ها ( تأکید می کرد. اوباما ظاهراً بارها تأکید نموده که امریکا با اسلام در جنگ نیست؛ بلکه با تروریزم و افراط گرائی در جنگ است. به همین علت در دوران او از مسلمانان میانه رو حمایت زیادی صورت گرفت.

روزنامه نیویارک تایمز و برخی از آگاهان امریکائی این اقدام اوباما را هوشیاری او عنوان کردند؛ زیرا در نشست اخیر اوباما در باره افراط گرائی این نظریات را بیان داشت: «...ارتش برای زدودن نفرت و مبارزه با افراط گرائی کافی نیست، باید حقوق بشر، دموکراسی، همدیگر پذیری و گفتگوی ادیان را هم تقویت کنیم.» اما سوال اساسی اینجاست که چرا امریکا توجه جدی به جنگ فکری نموده است؟ تحقیق اخیر موسسه (Mercy Corps) نشان میدهد که اکثریت جوانان مسلمان به خاطر مشکلات اقتصادی دست به جنگ و مبارزه با غرب و امریکا نمی زنند؛ بلکه به خاطر سیاست های امریکا در قبال اسلام، دست به جهاد و مبارزه میزنند. هرچند اعمال و فعالیت گروه های غیرسیاسی و مبدائی مسلمانان، به امریکا کمک کرد تا جنگ علیه اسلام را توجیه کند. همچو اقدامات، امریکا را با گروه های که مخالف امریکا نسیتند نزدیک تر ساخت و از قیام عموم مسلمانان علیه امریکا جلوگیری نمود.

این شیوه استفاده امریکا از مسلمانان میانه رو است که می خواهد اسلام را برای مسلمانان به طرز امریکائی ارائه کند، اسلامی که اند کترین خطر را متوجه امریکا و غرب نمی کند. این کار برای امریکا آسان نیست؛ مگر از طریق مسلمانان میانه رو و غیر سیاسی به هدف خویش میرسد. به همین دلیل امریکا حالا از دروازه دیگری داخل نبرد با اسلام شده است.

از نظر امریکا خردمندانه آنست که مؤلفه های در جهان اسلام ترغیب شوند که با صلح امریکائی و جامعه جهانی سازگاری داشته باشد. سرانجام امریکا این برنامه اش را به گونه ی ذیل به پیش میبرد:

۱- چاپ و نشر آثار مسلمانان میانه رو.
۲- تشویق به نوشتن برای مخاطبان مسلمان، به ویژه جوانان.
۳- گنجانیدن نظریات میانه روها در نصاب تعلیمی.
٤- ارائه خط مشی کلان برای آنها.
٥- طرح پرسش های بنیادین در خصوص اندیشه ها و داوری های مرتبط با تفسیرهای مذهبی برای مخاطبان عام.
٦- اشاعه تفکر سکولاریزم و مدرنیزم غربی.
۷- تسهیل و تشویق جهت آگاهی در خصوص تاریخ و فرهنگ غیر مسلمانان و فرهنگ قبل از اسلام، در مطبوعات و نصاب درسی در کشورهای اسلامی.
۸- کمک و توسعه سازمان های مدنی ظاهراً مستقل، ارتقای فرهنگ مدنی و فراهم آوری فضا برای عموم شهروندان جهت آموزش در خصوص فرایند سیاسی و ابزار دیدگاه ها.

۹- آموزش سنت گرایان و میانه روها جهت بسیج و آمادگی بهتر در مناظره با بنیادگرایان و همچنان افزایش حضور و چهره میانه روها در نهادها؛ تشویق صوفی گری، دامن زدن به اختلافات میان بنیادگرایان، تشویق روزنامه نگاران برای تحقیق در خصوص موضوع های فساد، ریا کاری، تذویر و بی بندوباری در محافل.

بناً امریکا مسلمانان غیرمبدائی و میانه رو را به ترین گزینه برای توسعه اسلام دموکراتیک در نظر دارد. به باور آنها از میان تمام گروه ها تنها گروه های میانه رو با ارزش های جامعه دموکراتیک و مدرن همسوئی بیشتر دارند. امریکا معتقد است که میانه روها اعتبارنامه های موثق از پوهنتون های مشهور جهان دارند، به همین خاطر آنها در میان مردم جای پای داشته و مردم به آنها احترام قایل اند؛ مانند بعضی مفتی ها درکشورهای: مصر، سعودی، ترکیه... است.این افراد در همچو شرایط برای امریکا بهترین فرصت به حساب میرود. چنانچه سیاست مداران امریکائی میگویند:«باید میانه روها نمایانگر چهره ی واقعی اسلام معاصر باشند تا بینادگرایان توسط میانه روها به چالش کشیده شوند و در میان مسلمانان باید الگوهای ساخته شود.» طوریکه مفتی های الاز هر و رئیس جمهور ترکیه نمونه ی خوبی از این قبیل اند!

برنامه حمایت از مسلمانان میانه رو زمانی از سوی امریکا مطرح گردید که امریکا خواست پالیسی اش را در قبال جهان اسلام تبیین نماید. این برنامه را زیر عنوان مبارزه به هدف" تسخیر دل ها و ذهن ها" قرار داد. همچنین در سال ۲۰۰۷ انستیتیوت "رند" که به خاطر ایجاد شبکه مسلمانان میانه رو فعالیت می نماید در گزارشی فاش ساخت:«در جهان اسلام جنگ فکری در راه است که نتیجه آن مسیر و سرنوشت آینده ی جهان اسلام را تعیین میکند«.

در حال حاضر سازمان توسعه بین المللی امریکا (USAID)بیشتر از ۳۰ سازمان را در سراسر جهان اسلام تمویل می کند تا منافع امریکا را تأمین نموده و اسلام مورد نظر امریکا را تبلیغ نمایند. این سازمان شامل رسانه ها، ایجاد ورکشاپ برای علماء، سازمان های اصلاحِ نصاب تعلیمی برای مکاتب، پوهنتون ها... میباشد. افزون براین، در حال حاضر سازمان توسعه بین المللی امریکا بیشتر از۴۰ ایستگاه رادیوئی و یک صد روز نامه را در سراسر جهان اسلام تمویل می نماید تا منافع امریکا را تأمین و اسلام مورد نظر امریکا را تبلیغ و ترویج کنند. نهادهای فوق ماموریت دارند تا روی سازگاری و تلفیق اسلام با دموکراسی و حقوق بشر کار کنند. این سازمان امریکائی حتی به برخی مفتی ها پول هم می پردازد تا موازی با سیاست های امریکا فتوای صادر کنند.علاوه بر آن، این سازمان در صدد جلب و جذب مفتی های میباشد که برضد امریکا فتوای صادر نمایند. چنانچه وزارت دفاع امریکا در یکی از گزارش های خود فاش ساخته بود که امریکا در حال حاضر در دوجبهه با اسلام در جنگ است؛نخست جبهه نظامی و دوم جبهه فکری. آنها به این باور اند:"زمانی برنده می شویم که افکار و ایدیولوژی افراط گراها نزد اعضا و حامیان شان بی اعتبار شود".

بناً برماست تا بیداری را اختیار کنیم و از فعالیت افراد و گروه های که به الله و رسولش صلی علیه وسلم خیانت می کنند خود را آگاه سازیم. ضرب المثل مشهور است که می گویند: "زمستان میرود و روسیاهی اش به زغال می ماند." ریشه استعمار برکنده خواهد شد و اسلام عزیز همچنان از تحریف مصئون و این روزگار تاریک به تاریخ خواهد پیوست!؟ از سوی دیگر، غرب و در رأس آن امریکا و دست نشانده گانش باید درک کنند که اسلام حق بوده وپیروان سرسپردهای زیادی دارد تا این برنامه های شوم کفار را افشا سازند. از اینرو فرزندان مخلص اسلام همواره تلاش دارند تا چهره ی واقعی استعمار و اسالیب آنرا برای امت مسلمان و همه جهانیان افشا سازند وتا آخرین رمق حیات از منهج راستین رسول الله صلی الله علیه وسلم پیروی کرده سرانجام با نظام الهی به این همه کدورت های کفار پایان بخشند.

Pugwash

CONFERENCES ON SCIENCE AND WORLD AFFAI

Nobel Peace Prize 1995

# دپګواش غونډه کې ګډون

## داسلامي امارت بل سیاسي بری دی...

امید

په افغانستان کې دامریکائي تاړاک په مشری دشاوخوا یوپنځوس هېوادو دمجموعه پوځي ځواک په ناکامی او شرمنده ګی دادی جنګ څوارلسم کال ته وغځید!خو دښکېلاک په رویه او روحیه کې د یوې لو یې ستړیا نښې لیدل کېږي! او دنړی ګڼ سیاسي شناندي او کارپوهان په دې حیران دي ، چې آخر د دومره بیساري پرمختللي ځواک دکارولو سربیره بیا هم طالبان شته او خپلې مبارزې او جهادته دوام ورکوي؟

امریکا هڅه کوي څو په افغانستان کې د خپل شکست اثار له نړۍ پټ کړي، دمختلفو وسایلو او پلانونو د لارې نړیوالو ته داسې ښیي چې ګوندې میدان دوی وړی دی او طالبان له ماتې او ستونزو سره مخ دي ! او فغانان مجبوردي چې ددوئ غوښتنې ، ارادې او فمایشونه له څنډ پرته من اوعن اومني! خو نړی کې دامریکا یانو دغه روش دهیچا لپاره قناعت بښونکی ندی هغوی دمختلفو لاملونو او دلایلو په درلودو له وړاندې څخه دامریکایانو دبري د عوې ته دشک په نظر ګوري.

طالبان پرلپسي- دبېلابېلو مطبوعاتي اوسیاسي وسیلو او فرصتونو له لارې دامریکایانو دبري دعوې تردید کوي، او ټینګار سره یې ویلي چې امریکا دجګړې اصلي حالت له نړیوالو څخه پټوي، اوپه اړه یې ناسم معلومات ورکوي،کنه په جنګ کې دامریکایانو دسرونو اومالونو زیانونه خورا حیرانوونکي دي، او دبري چانس نلري

بیشکه طالبانو په هرډول تریینګلو شرایطو او ستونزمنو حالاتو کې جهاد ته دوام ورکړ،او دامریکادتیري په مقابل کې یې ترمهاله دخپلې مبارزې سنګرونه تاوده وساتل ، او دډېرو لویو قربانیو په ورکولو یې په امریکایانو او دهغوی په تالیڅټو افغانستان زمکه سورتنور کړې، دامریکا دبري هغه ټول ارمانونه د خاورو سره ګډ کړل، دکومو لپاره یې چې په افغانستان یرغل راوړی و او دخپلو ټولو ملاترو سره یکې ستومانه او سرګردانه پاته ده، چې له امله یې زیات اشرباني هېوادونه په تیښته لاړل اووتل اوپاته نور نن دی که سبا دځانو لپاره دتیښتې لارې لټوي.

نن دامریکا دننه لوی شمېر امریکایان له دې پلوه ورخطاء او اندیښمن دي، چې دافغانستان جنګ یواځي دوی ته پاته دی، نوروځینو ځواکونه و ایستل او پاته نور یې په ویستلو لګیادي، او هر چې امریکایان دي دهغوی هره ورځ لسګونه عسکر دجګړې خوراک ګرځي ، هم هره ورځ امریکا په جنګ سلګونه ملیونه ډالر مصرفوي، ددې ټولو باوجود بیا هم دبري څرک یې نه لیدل کېږي ، له دې امله هر امریکا یې وګړی داوباما پر حکومت شدیدې نیو کې کوي،او هغه دجګړې په ژرپای ته رسولوکې پاته بولي.

اوباما او دهغه حکومت دخلکو جنګ ضد احساسات حسوي، او کوښښ کوي چې دسیاسي غرزو پرزو له لارې هغوی مصروف وساتي او دجنګ په ځای دسیاست په میدان کې خپلې

موخې ترلاسه کړې یا پر بله وینا د تزویر او فشار واردولو له لارې هغه کوي څو طالبان مرعوب وساتي، او ورسره دځینو مهمو مسایلو په سر یې جوړ جاړي ته کولو اړباسي. خو بریښي چې طالبان دوختي شرایطو پیژندلو له ملکې سره اشنا شوي دي،هغوی دبیړنیو گامونو پورته کولو په ځای تدریجي گامونه اخلي، دهر نوي بهیر او پړاو په وړاندې دسملاسي غبرگون ښودو نه په ځای ، هغه دقیق څېړي، وضعیت کاملاً څاري اوبیا که ضروري وه غبرگون ښیي، دجگړې په ډگر کې دامریکا کمزورې هغوی درک کړې او ورته په پام دا غوره بولي چې امریکا یان دجنگ ترخه عواقب په زیاته پیمانه وڅکي، څو په راتلونکي کې بیا عبرت واخلي، دغه وجه ده چې دامریکا یا دکابل گوډاگي رژیم سره دخبرو کولو لپاره دخپلو اصولو او شرائطوپه سر هیڅ کومې معاملې کولوته حاضر ندي او د وروستي خارجي عسکر ترشتونه دجهاد جاري ساتلو عزم په بیا بیا تکراروي.

په دې معنی چې دامریکا سره په خبرو کې دباور روحیې پیدا کولو لپاره له افغانستانه دامریکا په گډون دټولو یرغلگرو عسکرو وتل لازمي بولي، او په هیڅ صورت ددې دریځ نه په شاه کېږي نه، او وایي چې ترڅو یو خارجي عسکر هم پاته وي ددوی لخوا به مبارزه او جهاد هم دوام ولري،ځکه دعسکري انخلاء پرته له امریکا سره ددوی ناسته یا خبرې هیڅکله د افغانستان او افغان ولس لپاره مثمرې ندې بلکې سرچیه شاید په ولس او قوم کې خپل اعتماد ته صدمه ورسوي.

خو امریکا د دې لپاره چې په ولس کې دطالب دباور ریښې کمزورې کړې، څو واره کوښښ وکړ، چې دطالبانو ترمنځ دجعلي او اصلي طالب په عنوانو او نومونو درز واچوي، په دې لړ کې ځینې جعلي څېرې د رسنیز پروپاگند په موخه رامنځته کول ، او هغوی داسې مشهورول چې گواکې طالبانو دامریکا سره مخامخ خبرو ته غاړه ایښې، هم داشان یه ځینو سیمو غله او دخلکو دمالو نو لوټوونکي دطالبانو په نوم وړاندې کول،په نمایشي ډول د هغوی نه وسلې تسلیمول ټول هغه څه دي چې امریکا غوښتل په دې کار سره دطالبانو نیک شهرت ته زیان ورسوي، اوبل دا وښیي چې لوی شمېرطالبان دجگړې څخه لاس په سر او دگوډاگي رژیم سره یوځای شول خو ډېر ژر دغه دسیسه رسوا شوه او هرچاته ښکاره شوه چې دا د امریکایانو لخواد جعل کارۍ دسیسه ده چې امریکاغواړي په دې سره خپلې شومې موخې ترلاسه کړې.

طالبان ترپایه له خپل دریځ اومسیر ه ونه گرځیدل او ترآخره د خپلو اصولي غوښتنو څخه وروسته نشول، بالاخر دقطر جریان رامنځته شو، چې پکې داسلامي امارت دمشرتابه په حکم داسلامي امارت څوتنه رښتني استازې گډون لري او د عربي خلیج دمشهور اسلامي او عربي هېواد په کوربه توب داسلامي امارت استازو ته ددې فرصت په لاسو ورغی چې هغوی د بیطرفو نړیوالو سره مخامخ کیني او دافهام او تفهیم دیپلوماسۍ له لارې دهغوی ځینو نیوکو او اعتراضونوته ځوابونه ووایي،اوپه افغانستان کې دروانو واقعیتونو څخه هغوی آگاه کړې دکومو چې امریکا دپټولو کوښښ کوي،په دې توگه دډېرو هغو هېوادونو اندیښنې ځواب شوې کومې چې دامریکایانو دتبلیغ او پرو پاگند زیږولې وې ،هغوی په دې قانع شول چې دافغانستان دننه دټولو ستونزو مور دامریکا پوځي شتون دی چې هرکله امریکا له اشغاله لاس په سرشوه په هم هغه ورځ افغانستان او سیمه به نجات ومومي نو اړتیا ده چې هرڅومره ژر ممکن وي باید بهرنې ځواکونه وایستل شي او د افغانستان اشغال ته دپای ټکی کیښودل شي.

امریکایانو او دهغوی لاسپوڅو ټینگار په دې کاو چې اسلامي امارت دې دفتر [دطالبانو اسلامي تحریک] په نوم پرانیزي،نه د[ اسلامي امارت) په نوم! چې دا کار داسلامي امارت مشرتابه او افغان ولس لپاره قانع کوونکی نه و، ځکه اسلامي امارت یوڅرگند څمکنی او شرعي حقیقت و، چې دامریکا په مشرۍ دصلیبي یرغلگرو لخوا دافغانستان دخاورې په اشغالولو د دغه حقیقت شرعي او دیني حیثیت نشي۔ بدلیدای، اونه د امریکا لخوا په غصب اوزور سره یو شرعي زعیم او مشر۔ د زعامت له موقف نه معزول گڼل کېدای شي، له دې وجې اسلامي امارت څنگه چې پرون ژوندی حقیقت و نن هم هغسي۔ داسلامي شریعت د زرینو لارښوونو له مخې د خپل ولس لپاره د اطاعت او

حاکمیت شرعي حیثیت یې پخپل ځای پاته دی له دې وجې طالبان حق لري چې هغوی دخپل دغه شرعي حق نه په کلکه دفاع وکړي، هم افغان ولس لپاره هیڅ داسې جریان دقناعت وړ نشي- کېدای چې د اسلامي امارت دد زعامت موقف له پامه وغورځول شي.

هو! دقطر له جریانه اسلامي امارت بلـه داگټه پورته کړه ، چې خپل پنځه تنه لوړپوړي مشران یې دیو امریکایې عسکر دېرېښودو بدل کې د گونتانامو جهنمي زندان څخه را ازاد کړل، او هلته دقطر په پلازمینه دوحه کې یې میشت کړل. په دې سربیره یې وکړای شول چې دقطرنه ځینو نړیوالو څېړنیزو کانفرانسونوته دورتلو فرصت پیداکړ، لکه دجاپان او فرانسې کانفرنسونه شول چې داسلامي امارت استازو پکې گډون سربیره ویناوي اورولي وې په ورته توگه ، دروان ۲۰۱۵ کال دمې په ۲-۳مه نېټه دقطر په مرکز دوحه کې داسلامي امارت استازو په هغه دوه ورځینې نړیوال کانفرانس کې هم گډون وکړکوم چې دقطرهېواد په کوربتوب او دپگواش نړیوالې مؤسسې په ابتکار جوړشوی و، او پکې یې دخپل مظلوم ولس غږ ترنړیوالو ورساو،چې دا په سیاسي ډگر کې داسلامي امارت ستر سیاسي برې گڼل کېږي.

دسیاسي کتونکو په وینا:دجاپان او فرانسې له غونډو وروسته دافغانستان رواني معضلې ته دحل مندلو پخاطر دپگواش نړیوالې ادارې دا گام ددې دلیل دی چې اوس په نړیواله توگه خلک دطالبانو په دریځ اونظریاتو باندې له پوهیدو سره علاقه لري، او غواړي په اړه یې له نیږدې څخه داسلامي امارت داستازو غوښتنو او وړاندیزونو ته غو ږ وباسي

ددې غونډو له لارې اسلامي امارت وکړای شول چې په مستقیم ډول دافغانستان دننه شته واقعیتونه او دجگړې دطول اساسي عوامل او لاملونه دنړیوالو په مخکې کېږدې، او هغه ناویلي حقایق چې امریکایانو پټ ساتي دکانفرانس دگډونوالو له لارې نړیوالوته ورسوي

دپگواش غونډې جوړونکو دغونډې په پای ته رسیدو، دپگواش نړیوالې موسسې دغونډې په اړه یو پریکړه لیک خپور کړ چې په هغه کې په ښه صراحت سره دا راغلي چې د دوحې غونډه بیطرفه او غیررسمي غونډه وه، او دبېلابېلو لوریو څخه دنظر خاوندان ورته بلل شوي وو، غونډې ته دټولو گډونوالو له لوري وړاندیزونه او پیشنهادونه وړاندې شول، پریکړه لیک وایي:دگډون والو نظرونه کومه رسمي بڼه نلري، او دقطر له دولت څخه یې مننه کړې چې هغه د افغانستان روان کړکیچ ته دپای مندلو په برخه کې دوامدار هلې ځلې او کوښښونه کوي.

په پریکړه لیک کې دملکي افغانانو دوژلو غندنه شوې اودهغوی ساتنه د ښکېلو لوریو شریکه دنده گرځو ل شوې، په پریکړه لیک کې دا هم راغلي دي، چې که هر سیاسي لوری منزوي کړای شي، دا به دسولې په وړاندې دخنډونو د اچولو په معنی وي،هم دا راز دغونډې گډونوالو لخوا دبهرنیانو په وتلو توافق څرگند شوی دی، چې دځینو په اند تروتلو مخکې په سیاسي توافق کولو ټینگار کیده، هم دا راز دطالبانو د مشرانونومونه له تورلسته ایستل هم دسولې لپاره اړین گام یاد شوی اوغوښتنه شوې چې باید له تورلسته دهغوی نومونه وایستل شي.

نوپه مجموع کې چې څېرشو دپگواش غونډه داسلامي امارت د دریځ روښانولو لپاره یو ښه فرصت اوښه معقول ستیج و، چې ورڅخه دموقع سره سم داسلامي امارت استازو گټه پورته کړه، په راتلونکي هم نړیوال ددې په ځای چې داسلامي امارت سره دکینې او عقدې دریخ خپل کړې باید افغانستان کې دواقعیتونو اصل ته په درناوي کولو اسلامي امارت دیو فعاله ځکمني حقیقت په توگه او منې او دتعصب له عینکو کتلو په ځای دې دواقعیتونو له عینکو افغانستان ته وگوري نوبیا شونې ده چې په نړۍ او سیمه کې دسولې راتلو سره دغه ډول هلې ځلي مرسته وکړي او دزور له لارې دکومې پروسې له تپلو دې ډډه وکړي او امریکا هم باید اومنې چې هغه دزور له لارې دخپلو ارادو په منلو کې پاته راغلي او وبه نشي کړای کولی چې داوږدې مودې پورې دزور او زرو ستراتیژۍ پرمخ بوځي.....

# عزم دلوړو عزایمو سره

هسې خو دبهرنو غاصبو داشغال نه پس چې هر نوی بهار راغلی دی او دافغانستان دا یخ غرونه او ځنګلونه ددې وړ ګرځېدلي دي چې پکې مجاهدین شپې تېرې کړي نو اسلامي امارت داسلام، مسلمانانو او خاورې نه ددفاع او دبهرنو قابضینو نه ملت او هېواد ته دازادۍ ورکولو په موخه دنویو عزایمو، نویو ولولو، نویو ارادو، نویو تاکتیکونو سره یوځای په نوي مبارک نوم پسرلني عملیات پیل کړیدي او په خپلو پاکو وینو یې داسلام دشجرې نوې آبیاري کړیده چې دافغانستان غر، دښته، کاني او بوټي دحال په ژبه داسلام ددې وفادارو عاشقانو درېښتني عشق او وفا ګواهي وایې.

خو ددې ځل پسرلني عملیات چې دعزم په مبارک نوم ونومول شول نو پکې دنړۍ په ګوټ ګوټ کې داسلام په درد هر دردمن وفادار بچي ته دازیری او هردښمن ته دا پیغام دی چې مسلمانو شازلمو دا ځل په خورا لوړ عزم دا پسرلني عملیات پیل کړیدي .

ددې عزم سره چې داځل به دبهرنو اشغالګرو دائمي فوځي اډې استخباراتي او ډیپلوماتیک مراکز، دلاسپوڅې ادارې داستخباراتو، دفاع او کورنیو چارو وزارتونه دسختو او درندو حملو لاندې راولي او زیاته توجو به یې همدې لور ته وي، پرمورال لویدلي دښمن به مخامخ تهاجمي عملیاتو ته او په ښارونو کې چریکي بریدونوکې ډېروالی راځي.

او ددې عزم سره چې داځل دهېواد په هرګوټ کې ددښمن پرضد عملیات کېږي نودتېرهرځل په نسبت به پکې د ډېر دقت نه کار اخستل کېږي ؛ دخلکو دسراومال ساتنې ته به پکې جدي پاملرنه کېږي او کومو مجاهدینو چې دعملیاتو پرمهال دولس دځان او مال ساتنې ته پوره توجو نه وي کړي او پدې اړه دغفلت ښکار شوی وي نو دشرعي اصولو سره سم به مجازات کېږي.

او ددې عزم سره چې داسلامي امارت دهمیشنۍ پالسۍ له مخې به په دیني مراکزو او عام المنفعه ځایونو بریدونه نه کېږي که څه هم دښمن ته پکې ددروند تاوان رسېدلو تمه او توقع وي یانې جوماتونه، مدرسې، ښوونځي پوهنتونونه، عمراني او عام المنفعه پروژې به خپل هدف نه ګرځوي.

اوددې عزم سره چې ددښمن او هدف په تعین کې به شرعي اصول او داسلامي امارت پالیسي اصل مرجع وي او هیڅوک به دخپلې رایې، خپل خواهش خپلې غوښتنې اودشرعي اصولوخلاف افراطي فکر تطبیق ته نه پرېښودل کېږي اونه به چاته ددې اجازه ورکول کېږي چې دښو اوبدو پرېکړې دخپلو قاصرونظرونو له مخې وکړي اویاخپلوخاموفکرونو ته په ثابتو اصولوترجیح ورکړي .

اوددې عزم سره چې دواحد قیادت یانې دامیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد حفظه الله په امارت کې خپل جهادي امور مخ په وړاندې بوځي، دمجاهدینو وحدت ته دتاوان رسولو، دجهاد دصف ماتولو او دمجاهدینو ترمنځ دافتراق او انتشار راوستلو اجازه به هیچا ته نه ورکول کېږي اومجاهدین به په کلکه ددې شي مقابله کوي ترڅو دهېواد په ګوټ ګوټ کې مجاهدین دمکار دښمن په لومو کې راښکیل نه شي، دمجاهد طاقت دمجاهد خلاف استعمال نه شي او هېواد موبیا دهغو ناخوالو سره مخامخ نه شي چې دتنظیمي جنګونو له امله دکومو ناخوالو سره مخامخ شوی و.

اوددې عزم سره چې دکومو اهدافو دحصول په موخه جهاد پیل شویدی دهغه اهدافو دحصول نه وړاندې به وسله په ځمکه نه ایښودل کېږي، دعالي اهدافو په سربه دچا سره سودا نه کېږي؛ څوک چې موږ ته دخیر رارسولو په ارادې کوم قدم پورته کوي له نېکې ارادې یې مننودی یو خو چاته به دا اجازه نه ورکوو چې زموږدعالي اهدافو نه زموږ دتېریدنې هڅې وکړي.

اوددې عزم سره چې ددښمن په مقابل کې به سرونه نه ټیټوو؛ دمادي وسایلونه به یې نه مرعوبه کېږو او دشکست خوړلي دښمن په غولونکو خبرو او کارونو به نه غولېږي او خپل مسیر به نه بدلوي.

او ددې عزم سره چې اوس چې ددښمن دستر شکست او دمجاهدینو دسترې فتحې ورځې رانېږدې شویدي مجاهدین به په خپلې اولوالعزمۍ برقرار پاتې کېږي.

هو! دا مجاهدین چې ددین، ملت او خاورې نه ددفاع په موخه په تشو لاسونو دامریکا په مشرۍ کې د ۴۸ غربي هېوادونو دستر اتحاد مقابلې ته راووتل، دخوراعصري ټیکنالوژۍ او پرمختللو عصري وسایلو نه یې ونه وېرېدل؛ دخدای په فضل تمو نه ډکو ددښمن په غوړول شویو دامونو کې راښکیل نه شول، د۱۴ کلونو په اوږدې مودې کې هجرتونو،شهادتونو زندانونو او نورو سختو تکلیفونو او کړاونو دخپل هدف نه وانه ړول نو دوئ رښتیا هم ددې وړدي چې دزمانې داولوالعزمۍ لقب ورکړل شي ؛رښتیا چې دوئ دخپل وخت اولوالعزم وو، اولوالعزم دي او ان شاءالله اولوالعزم به وي ټول عالم اسلام دې مطمئن وي چې اولوالعزم به پاتې وي او ورسره دټول مسلمان ملت ترلې امیدونه به پوره کړي.

# دوه ورځې او تاریخي عبرتونه!

له شک پرته چې د۱۳۵۷لمریز کال دثور ۷ نیټه زمونږ دګران هیواد او متدین ولس لپاره حساسه ، غملړلي اوتوره ورځ ده .

شپږ دیرش کاله وړاندې دافغانستان سیاسي ، پوځي او اجتماعي فضاواوښته ، دداود خان دواکمنی پرخلاف روس پلوه اجیرانود دزریدارو اوهوایی قوتونو په مټ اود K.G.B دپوځي افسرانو اوجنرالانو په مستقیم حضور په کودتا لاس پوري کړ .

دثور له کرغیړنې کودتا سره په ټول افغانستان کې دافغان مسلمان ولس په خلاف دوژنې، وینې تویدنې ، نفاق ،شکنجو ، تبعید اوډول ډول فجایعو او ناروااوو لړی پیل شوه او دکمونیزم بچوړو زمونږ دولس او اسلامي معتقداتو په وړاندې په ناترسه شقاوت اودښمنی باندې لاس پوري کړ.

خلقیانو او پرچمیانو له یوې خوا په روس او کمونیزم دومره فخر کولو چې یوه دقیقه یې هم دلینین او مارکس صفتونه له خولې نه غورځول اوبل لورته یې په اسلام، عالم، ملا، صوفي، جومات، لمانځه اونورو اسلامی شعایرو ملنډې وهلې، د ولس په بانفوذه خلکو، خان، ملک، مخور، د کلي د سر په سړیو یې مسخرې او استهزاءګانې کولې ، دابتلاګانو هسې دور پیل شوچې چا په خوب هم نه ؤ لیدلی، پټې او ویدې فتنې راویښې شوې.چا ته به یې مرتجع ویل، چا ته فیوډال، چا ته د انګریز جاسوس چا ته د خمیني پیرو چا ته اخواني، چاته اشرار او نور نور... وي

د هېواد لوی لوی روحانیون او علماء د قلعه جواد حضرت صاحب سره له ټول خاندانه یې د شپې په تور تم کې د زنانوو په شمول ونیول او تر ننه لا درکه دي. د تکاب میا ګل جان اغا ولسي خلکو د (۱۳۵۷) کال د ژمي په واورو کې په کټ کې د غرونو له لارې پیښور ته وویست اود خلقی حکومت دخونړیو منګولوڅخه یې وژغورلو.

خلق او پرچم دکلیو او باندو په بمباردولو پیل وکړبالآخره د هغسې مقاومت سره مخ شو چې نه روسانو یې تصور درلود او نه دوی. یوه نا اشناء بده او بدرنګه کودتا د یوه شدید عکس العمل سره مخ شوه. څومره چې خلقیانو اسلام او ولس ضد فعالیتونه په شدت پیل کړي وو څو برابره زیات د مسلمان ولس د شدید مخالفت ، جهاد او مقابلې سره مخامخ شول.له دوه ملیونو زیات مسلمانان یې ووژل ،لس لکه خلک یې دخپل وطن پریښودلو ته اړ کړل ، خو دوی هم دآرام ورځ ونه لیده.

هو! ولسونه څورول، ټکول، زنداني کول، وژل او شړل همداسې بد نتایج تر شا لري. هیڅوک دې په خپل شور او د پردیو په زوراوشا باس نه غولیږي. ولسونه او کلي په زور نه کېږي، نه جوړیږي او نه چلیږي

کمونیزم نن د تاریخ زباله دان ته غورځول شوی، څوک به وا نه وري چې چېرته کوم سړي د کمونیزم مفکوره غوره کړي وي.

کمونستان نن سبا د کمونیزم څخه په تېښته کې دي. دغرب او امریکې لمنې ته پناه وړي.

**دثور ۸ :**

افغانان د۱۳۷۱ کال دثور اتمه دمجاهدینو او اسلامي انقلاب دبریا دورځې په نامه پیژنی او ویاړ پرې کوي ، که څه

هـم ځینـو مجاهـد نمـا ډلـو دخپـل منځـی خودخـواهی اوقـدرت طلبـی لـه املـه دجهاد ارمانونه  اوهیلي پلي کیدو ته پرینښودي او افغان ولس ته یې نوري بدبختی راوزیږولي ، خو دثور اتمه یوازې کابل تـه دحضرت مجددي دننوتلو دورځې په عنوان نه بلکې زموږ د ځورالس کلن پـرتمین جهـاد دبریـا ، دکمـونیزم دشکسـت او دافغانسـتان دازادی دسمبول پـه حیث لـه ستر ویـاړ ځخه ډکـه یـوه تـاریخي ورځ ده چې باید زموږ مؤمن ولس وربانديې وویاړي .

ځکـه ددغـه سرلـوړی جهـاد پـه برکـت دکمونیزم نړیوال ښامار ټوټه شو او درستی نړی د مارکس ، انګلز او لنین لـه جنجالي منحـوسي مفکـورې ځخـه خلاصـون ومونـد، مـوږ دا ورځ دخپلو شهیدانو دیاد سمبول بولو چې په تش لاس له پولادي ټانګونو او ناپالم بمونو سره وجنګیدل ، په دې ورځ باید خپل ځورالس کالونه د سختیو ، هجرتونو ، شهادتونو او حماسو یادونو راتـازه کـړو ، بایـد دخپلـو شهیدانو ارواحـو تـه دعـاء وکـړو ، دهغوی په قبرونو راوګرځو ، دالله تعالی له دربار ځخه د خپل پاک جهاد ، هجـرت ، شـهادتونو او نورو تکالیفو د قبول خواست وکړو ، په عین حال کې باید دثور او داوومـې او اتمـې ورځـې د پـس منظر په تحلیل سره دتاریخ لـه دې دوو عبرتنـاکو ورځو ځخه بشپړ عبرت واخلو ،ددې ترځنګ هغه ځوک هم دغندلو اومحکومولو وړوبولو او دنفرت په سترګه ورتـه  کتل پکـار دي ، چا چې ددغه عظـیم جهـاد لـوړ مصـالح او امیدونـه دخپلـو ځاني  ګټو قرباني وګرځول.

# په برما کې د ۳۰۰ زرو مسلمانانو تابعیت لغو شو

د برما دولت په خپـل یـو نـوی اسلامي ضد اقدام کـې، د تېـرو ځلورو میاشتو په موده کـې د ۳۰۰ زرو ۴۳۲ برمـایي مسـلمانانو، چـې د اراکان ایالت اوسیدونکي وو، تابعیت لغو کړی دی.

د برما اراکان آژانس په دې اړه راپور ورکړ، چې د برمـا د کـډوالو چارو د مدیر د اعلان له مخې، د دغې ادارې د کډوالو ځانګې افسرانو په تېرو ۴ میاشتو کې، د دغه ایالت له مسلمانو اوسیدونکي ځخـه ۳۰۰ و ۴۳۲ د تابعیت تذکرې راټولې او باطلې کړې دي.

خین سو همدا راز ټینګار وکړ، چې دغه شمېره نژدې د یاد ایالـت دمسلمانانو نیمایي برخه په بر کې نیسي او موږ د دې واک لـرو، چـې د مي میاشتې تـر پایـه پـه دې ایالـت د ټولـو مېشـتو مسـلمانانو د هویـت پېژندپاڼې یا تذکرې مصادره او باطلې کړو.

د برما دولت له ۱۹۸۶کال راهیسې د روهینګا یو میلیـون مسـلمانو وګړو ته د تابعیت تذکرې د وېش چارې پیل کړې وې، چـې لـه لسیزو وروسته دا دی بېرته باطلوي.

د برما دولت، د روهینګیایي مسلمانان، چې د دې خاورې اصـلي او پخواني اوسیدونکي دي، پر دې اړ باسي، چې یا دا ومنـي چـې بنګالیـان دي، یا به نیول کېږي، ځورول کېږي او په کمپونو او نامعلومو ځـایونو کې د ژوندانه په سختو شرایطو کې اوسیدو ته مجبورېږي.

د روهینګیایي مسلمانانو یو زیـات شـمېر وګـړي، لـه نسـل وژنـې ځخه د خلاصون په موخه، نورو ګاونډیو هېوادونو ته تېښتېدلي دي.

په برما کې پر مسلمانانو د زور زیاتي او ظلمونو د نوې دورې لـه پیل ځخه نژدې ۳ کاله تېرېږي، چې دوی د توندلارو بوداییانو لـه خـوا وژل کېږي، ژوندي په اور کې سـوځول کېـږي، مالونـه او شـتمنې یـې چپاو کېږي او پر هغوی جنسي تیری کېږي، خو نړیوال بشرې حقـوق سازمانونه، ملګري ملتونه، نړیواله ټولنه او په ځانګړې توګـه اسـلامي هېوادونه په دې برخه کې بشپړه چوپتیا غوره کړې ده.

# د اسلامي امارت له ویاند

# قاري محمد یوسف احمدي سره مرکه

درنو لوستونکو !

له مسؤلینو او صاحب نظرانو سره د مرکو په لړ کې مو د اځل د اسلامی امارت له ویاند ښاغلي قاري محمدیو سف احمدي سره د افغانستان دروانو پیښو، عزم عملیاتو ، سیاسي وضعیت او نورو ذیربطه موضوعاتو په اړه مرکه کړې ده، چې ستاسو توجه ورته راګرځوو.

**پوښتنه**

د اسلامی امارت ښاغلي قاري محمدیوسف احمدي !

له هرڅه وړاندې درته هرکلي وایو، که لومړی دهیواد دعمومي وضعیت په اړه زموږ لوستونکو ته معلومات ورکړئ مهرباني به مو وي .

**ځواب**

الحمدلله رب العلمین والصلوة والسلام علی رسوله محمد و علی آله و اصحابه اجمعین . و بعد

له هرڅه وړاندې خپل سلامونه او نیکې هیلې تاسو او لوستونکو ته وړاندې کوم، د مرکې ددعوت له امله له تاسو مننه کوم، او ستاسو د پوښتنې په اړه باید ووایم چې لله الحمد د هیواد روان حالات په خاص ډول جهادی وضعیت د جهادي صف په نفع جریان لري .

تاسو پوهیږئ چې هیواد مو اشغال دی او نړیوالو کافرو زورورو په ډیر وحشیانه ډول وړاندي حشر- کړی او په یو اړخیز شکل یې قبضه کړی دی،مګر لله الحمد زموږ مؤمن او مجاهد اولس د اسلامي امارت په چوکاټ کې دعالیقدر امیرالمؤمنین تر رهبرۍ لاندې متجاوزو اشغالګرو ته لکه چې پکار وو داسي ځواب ورکړی، او دروان ظالمانه اشغال په وړاندې یې په دیني،سیاسي او عقلي اعتبار پرځای او مناسب دریځ نیولی، ولس مو د یرغلګرو په خلاف او د اسلامي حاکمیت د اعادې لپاره جهادي مبارزه په ډیر متانت او ایماني قوت سره جاري ساتلې او په تیرو نږدې څوارلس کلونو کې یي په دې لاره کې د هیڅ ستومانۍ احساس نه دی کړی ، همدا اوس د اسلامي امارت تر مشرۍ لاندې جهادي مبارزه تر ټولو په ښه حالت کې قرار لري ، د هیواد په دوه ثلثه خاوره باندې داسلامي امارت حاکمیت اوشرعي نظام ټینګ دی اودهیواد پنځه شپیته سلنه خاوره د کفر او فساد له خبث څخه پاکه شوې ده، یرغلګرو په نظامی ډګر کې بشپړ شکست خوړلی، لسګونو یرغلګرو هیوادونو خپل پوځیان په مکمل ډول له افغانستانه ایستلي دي، کوم یرغلګر چې پاته دي،هغوی د جګړې او له مجاهدینو سره دمخامختیا مورال کاملا بایللی نو ځکه په خپلو بیسونو کې محاصره ژوند تیروي ، د یرغلګرو د پوځي،سیاسي او رواني شکست غوندې ددوی ګوډاګیان او تحت الحمایه رژیم هم په ټولو اړخونو کې له رسواییو او مطلقې ناکامي سره مخامخ دی، ګوډاګی رژیم په داسې سیاسي

کړکیچ کې ښکیل دی چې هره شیبه یې بقاء له خطر سره مخامخ ده او کیدای شي ډیر ژر په خپله ونړیږي، د گوډاگیانو پوځي توان هم د ښخوا غوندې نه دی، متحده قومنده او جگړه ایزه مورال نلري، گوډاگي رژیم د اولس او نړۍ په کچه خپل اعتبار داسې له لاسه ورکړی چې ښایي تر دې ښخوا افغانستان دومره بې اعتباره او د مسخرو وړ حکومت نه وي لیدلی اولس د امریکایانو له گوډاگیانو بیزاره شوی او ددوی شتون د خپلو دیني او ملي گټو په زیان بولي .

بالمقابل لله الحمد اسلامي امارت او تر رهبرۍ لاندې مجاهدین یې د هرکله په پرتله په ښه وضعیت کې دی، اسلامي امارت د نړیوالو یرغلگرو په ماتولو سره دیوه فاتح او پایدار صف په حیث ثابت شوی دی، چې اوس یې په ملي او بین المللي کچه له دې پرستیژ څخه سترگې نه شي پټیدلی، دامارت داخلي نظم، د مجاهدینو داطاعت روحیه،دمجاهدینو اصلاح او تربیه ،له اولس سره حسن تعامل او په قضایاوو کې ورته داولس مراجعه او په شرعي ډول دهغه حل اوفصل همداراز ،ددښمن په وړاندې ثبات دانښیي چې په ټولو برخو کې جهادي صف د ترقۍ په حال کې دی، چې دا په دې امتحاني شرایطو کې دالله تعالی مرسته او په دې جهادي صف دالله تعالی ځانگړې نظر او مرحمت دی ، والحمدلله علی ذالک .

**پوښتنه**

تاسو د اسلامي امارت د هراړخیزو بریاوو او لاسته راوړنو په اړه څرگندونې وکړې کولای شئ په دې برخه کې تفصیل ورکړئ ؟

**ځواب**

بلې، په بیلابیلو برخو کې داسلامي امارت د لاسته راوړنو او پرمختگونو په اړه ویلی شو، چې په نظامي برخه کې خو تاسو وینئ چې دافغانستان په څلور دیرشو ولایاتو کې داسلامي امارت ټول تشکیلات نورمال فعالیت لري ،مجاهدین د اکثرو ولایاتو په اکثرو سیمو بشپړ کنترول لري ،په عموم کې حکومت په محاصره شکل گوزاره کوي،مجاهدین په ټولو ولایاتو کې عملا په تعرضي بریدونو، استشهادي عملیاتو او سترو جبهه یې جگړو لاس پورې کړی او په جگړه کې د تعرض ابتکار په لاس کې لري،مجاهدینو په تیرو څو میاشتو کې متعددې ولسوالۍ فتحه کړې دي ، د دانگام، بکوا، وردوج ،نوبهار ، جرم ،چهلگزي، او د کندز د گورتیپې او امام صاحب د سیمو غوندې مهمې سیمې مجاهدینو په تصرف کې راوستي او په دښمن یې مرگوني گوزارونه کړي ،مجاهدین توانیدلي چې د هلمند،غزني،کندز او کونړ د عملیاتو په څیر ددښمن ستر عملیات شنډ او له شکست سره مخامخ کړي،د جگړې د میدان غوندې د جهادي اعداد،روزنې او د وسائلو له اړخه د خودکفایي په برخه کې هم مجاهدینو ډیرې لاسته راوړنې درلودلې دي چې دا د کفر په خلاف د جهاد دبقاء په برخه کې ښه زیری دی .

د جهاد سره تر څنگ داسلامي امارت د دعوت پروگرام هم بریالی روان دی او هره میاشت گڼ شمیر خلک ددښمن له لیکو راوځي او مجاهدینو ته تسلیمیږي یوازې د تیر اپریل په میاشت کې ۲۳۱ کسان له خپلو وسلو سره ددښمن له صفه راوتلي او له مجاهدینو سره یوځای شوي دي،په سیاسي برخه کې هم د اسلامي امارت خپل فعالیت په مؤثر او مدبرانه شکر جریان لري، د روان کال د درجب میاشتې په منځنیو ورځو کې د اسلامي امارت د سیاسي دفتر اعضاوو په قطر کې په یوه کانفرانس کې په گډون سره د اسلامي امارت داعیه له یوه نړیوال ستیج څخه اعلان او د خپلو ټولو دوستانو او دشمنانو غوږونوته ورسوله ، اسلامي امارت د اشغال په خلاف په جهادي مبارزه ټینگار وکړ او له خپل مشروع موقف څخه یې دفاع وکړه .

دغه راز په نورو ټولو برخو مثلا نشراتي برخه کې هم داسلامي امارت فعالیتونه په ښه توگه پرمخ ځي او دښمن له ټولو هڅو او خواریو سره سره نه دی توانیدلی د اسلامي

امارت د حقانیت اواز خاموش کړي یا دغه ستر حقیقت د نړیوالو له سترګو پټ وساتي .

**پوښتنه**

د روان ۱۴۳۶ هـ ق کال د رجب المرجب میاشتې په پنځمه نیټه د اسلامي امارت د رهبري شورا لخوا دعزم په نوم عملیات پیل شول، مشخصا ددې عملیاتو د جریان په اړه که معلومات راکړی ؟

**ځواب**

الحمدلله د عزم عملیات لکه تاسو چې شاهد یاست په ډیره ښه توګه روان دي او هره ورځ یي بهیر توندیدونکی دی، ددغه عملیاتو په لومړۍ ورځ مجاهدینو په درست هیواد کې له ۳۰۰ زیات بریدونه ددښمن په مواضعو ترسره کړل،د معمولو بریدونو تر څنګ د عملیاتو په دوهمه ورځ ستر تهاجمي عملیات هم د هیواد په مختلفو سیمو کې پیل شول په دې لړ کې تاسو ولیدل چې د کندز په ولایت کې مجاهدینو فوق العاده پرمختګ وکړ،د کندز د مرکز مربوط د ګورتیپې سیمه ، د قلعه زال او علي اباد ډیرې سیمې دغه راز د امام صاحب ولسوالۍ له مرکز پرته ټولې سیمې له دښمن څخه ونیولې دلته به زه د بیلګې په توګه په کندز کې د عزم عملیاتو د لومړۍ اونۍ لاسته راوړنې په لنډو درته ذکر کړم چې لوستونکو ته ددې عملیاتو مؤثریت په ډاګه کړي .

دعزم عملیاتو په لومړۍ اونۍ کې په کندز ولایت کې مجموعا: ۲۳۲عسکر، پولیس او اربکیان وژل شوي دي.۱۴۶ تنه نور مرګوني ټپیان دي. ۵۸ اربکیان ژوندي نیول شوي. ددښمن ۲۰ ټانکونه ویجاړ شوي. ۱۳ رینجر موټر یي له منځه تللي. ۶۵ پوستې له دښمن څخه نیول شوې دي. ۴۱ کلي د دښمن له وجود څخه پاک کړل شوي دي. ۱۲ ټانکونه، ۱۱ رینجرموټر، ۱۱ عرادي موټرسایکل، سلګونه میله وسله او زیات مقدار د ثقیله او خفیفه وسلو مهمات په غنیمت نیول شوي دي .دغه راز د کندز په ټوله جګړه کې ۹ تنه مجاهدین شهیدان او ۱۰ تنه ټپیان شوي دي.

د کندز غونډې په بدخشان ولایت کې هم مجاهدینو ستر فتوحات تر لاسه کړي دي، ددې ولایت په جرم ولسوالۍ کې مجاهدینو دشاهین قول اردو یو مکمل کنډک له منځه وړی ، چې ددښمن لسګونه عسکر په کې وژل شوي او لسګونه نور ژوندي نیول شوي دي، د جرم په فتوحاتو کې مجاهدین د ۳۰ کیلومتره په طول او عرض سیمه ددښمن له شتون څخه پاکه کړې او تر خپل تسلط لاندې یي راوستې ده .

د بدخشان د جرم غونډې په وردوج ولسوالۍ کې مجاهدینو د عزم عملیاتو په لړ کې ددښمن دوه مهم بیسونه او ۱۰ پوستې نیولې او زیات مقدار وسلې او مهمات یی هم ترلاسه کړي دي، دغه راز په بغلان ولایت کې د عزم عملیاتو په لومړۍ اونۍ د مرکزي بغلان ، پلخمري، دهنه غوري او دوشي په سیمو کې مجاهدینو ددښمن ۹ پوځي مراکز او ۲۲ پوستې فتحه کړي دي ۳۲ غټ کلي یي ددښمن له شتون څخه پاک کړي او په خپل تصرف کې یي راوستي دي، په بغلان کې په همدې موده کې ددښمن ګڼ شمیر عسکر له منځه وړل شوي او ډیر وسائل او وسائط یي مجاهدینو په غنیمت نیولي دي .

په یادو ولایاتو سربیره په فاریاب، غور او سرپل کې هم د سیمو د تصفیې او فتوحاتو بهیر خورا چټک روان دی او ان شاءالله په نږدې راتلونکې کې به موږ په دې سیمه کې د لویو فتوحاتو شاهد واوسو،د عزم عملیاتو په لړ کې د روزګان د امنیه قومندانۍ قومندان، دکندهار د امنیه قومندان مرستیال، په بلخ کې دپوځ ټولی مشر او هیواد په لراوبر کې ګڼ شمیر ددښمن مهم خلک له منځه وړل شوي دي،په کندهار ولایت کې په فدایي برید کې په یوه ورځ ۱۱ امریکایي عسکر ووژل شول،د فراه په بالابلوک، د هلمند په سنګین د خوست په علیشیرو ولسوالۍ او ګڼو نورو سیمو کې په تیرو څو ورځو

کې د پام وړ فتوحات دمجاهدینو په نصیب شوي دي چې دا ټول څه د عزم عملیاتوپه کامیابۍ دلالت کوي .

**سوال**

مجاهدینو له دښمن سره له جنګ جګړې نه علاوه نور داولس دپاره څه کړي او کنه ؟

**جواب**

بلي هو داسلامي امارت مجاهدینود اولس د سر او مال امنیت تامین کړی مثلا داختطاف او بې ځایه ناروا قتلونو او خود سریو اوظلمونو مخه يې نیولې او په ډیری ولایاتو کې يې اختطافګر نیولې او په خپله سزا يې رسولي او هغه چې بې ګناه انسانان يې يې قتل کړي ول دشریعت محمدي په رڼا کې زموږ دقضاتو دفیصلو له مخې قصاص کړي چې دشرعي حدودو اقامه او دشریعت تطبیق یوه مهمه فریضه ده چې الله تعالی ورباندې راضي کیږي او همدارنګه داولس ملاتړ را جلبوي او دا کار پر مجاهدینو دلا اعتماد سبب کیږي

بل دا چې دقضایاوو دښه حل په موخه زیاته فیصدي اولسي خلکو مراجعه ده چې مجاهدینو ته يې کوي هغه که په ښارونو کې وي که په لرې پرتو سیمو کې او همداراز يې اولس ته دعمراني کارونو او تعلیم او تربیي زمینه هم مساعده کړې او اولس ډیر ترې راضي دی .

**پوښتنه**

تاسو د اسلامي امارت د ویاند په حیث خپل اولس او اسلامي امت ته څومره ډاد ورکولای شئ چې اسلامي امارت به د جهاد اهدافو او د مجاهد اولس ارمانونو ته ژمن پاته کیږي او په دې برخه کې به د تساهل او تنازل پالیسۍ نه خپلوي ؟

**ځواب**

اسلامي امارت یو داسې صف دی چې دلته مجاهدین ټول دیوې نظریې او مفکورې په حیث راغونډ شوي دي، اصلا همدا مشترک ارمان او مقدسه نظریه ده چې دې صف ته يې روح او ژوند ورکړی دی، اسلامي امارت کوم داسې سیاسي ګوند نه دی چې ټول واک او د پالیسۍ اختیار يې د څو محدودو کسانو د مزاج تابع وي، زموږ پالیسۍ معلومه ده ، داسلامي امارت تګلاره هماغه محمدي شریعت او دالله تعالی نازل شوي احکام دي ، هغه د تغیر وړ نه دي د اسلامي امارت هر فرد له مشره تر کشره اسلامي شریعت ته په التزام مأمور دی،او که څوک له هغه نه عدول کوي لکه تاسو چې پخوا لیدلي اسلامي امارت له هغه نه بیزاري اعلان کړې او هغه يې له خپل صف څخه ایستلي دي.

نو بناء زه ټولو مجاهدینو، خپل مؤمن اولس او نړیوال اسلامي امت ته چې اسلامي امارت ته اعتقاد لري ډاډ ورکوم ،چې ددوی له هیلو سره به دوکه نه کیږي،دا صف د شهیدانو په وینو او مخلصو مجاهدینو په قربانیو راپالل شوی دی،اسلامي امارت د یوه فعال او ژمن جریان په حیث د خپلو پاکو اهدافو د ترلاسه کولو لپاره له بیلابیلو مشروعو لارو او فرصتونو څخه استفاده کوي، مګر لکه څنګه چې تراوسه الله تعالی له انحراف څخه ساتلی په راتلونکې کې به هم هیڅکله له شرعي کرښو تجاوز ونه کړي ، مجاهد او عام اوس باید په اسلامي امارت باور ولري، او ددشمن د تبلیغاتو ، شیطاني وسوسو او پیش قضاوتونو په ځای باید په واقعي وضعیت ځان خبر کړي او ترڅو يې چې په خپلو سترګو یو څه نه وي لیدلی چې له شریعت سر په تکر کې دي د مغرضوخلکو په خبرو پسې دې نه ګرځي .

**پوښتنه**

او وروستۍ پوښتنه دا کـه د اسلامي امارت ویاند خپل پیغام د هیوادوالو او مجاهدینو په نوم راسره شریک کړي .

**ځواب:**

زما پیغام لمړی داسلامي امارت مجاهدینو ته دی چې دوی دي لمړی شخصي- افعال اصلاح او دامیر اطاعت دي وکړي او په جهاد کې دي خپل نیتونه سم کړي او له اولس سره دي نور هم نرم او له عاطفې ډک چلند وکړي او ددښمن په وړاندي دي له قاطعیت او مؤثر تاکتیک نه کار واخلي او اولس ته مي دا پیغام دی چي نور دي هم دتیر په څیر دخپلو مجاهدینو ورونو تر څنګ اوږه په اوږه ودریږي په ځان او مال سره دي دخارجي یر غلګرو او داخلي ګوډاګیانو خلاف دمجاهدینو ورونو مرسته وکړي او دګوډاګی اداري وچار واکوته مي دا توصیه ده چي نور دي له دې صف نه راجلا او په رښتیا سره دي توبه وباسي او داردوعسکرو او پولیسو ته مي دا پیغام دی چي دخپلو ټوپکونو خولې دي داسلام او هیواد پر دښمنانو را واړوي او له دي فرصت نه دي اعظمي ګټه پورته کړي او دنړی له مسلمانو اولسونو نه مي دا هیله ده هر څومره چي ممکن وي دمجاهدینو مرسته وکړي اود هغو هیوادونوحکومتي چارواکو او مشرانو ته چي دناټو په چوکاټ کي یې دافغانستان په ورانولو کي برخه اخیستې مشوره ورکوو چي نور دي خپل عسکردامریکایي اهدافو لپاره نه قرباني کوي او بر خپله پالیسي دي له سره غور وکړي او خپل عسکر دي له افغانستان نه ژر تر ژره وباسي او نور دي نه افغانان کړوي او نه دي دافغانانو په لاس خپل بچیان وژني چي دابه هم ددوی په خیر وي هم دافغانانو .

مننه محترم قاري صاحب !

له تاسو هم مننه کوو بریالي اوسئ

## په سویډن کي ستره تاریخي کلیسا دخلکو دنه ورتګ له امله پلورل شوې

دسویډن په پلازمینه سټاکهولم کي یوه ستره تاریخي کلیسا دخلکو دنه ورتګ له امله پلورل شوې ده.

دا کلیساچي دسټاکهولم ښار په ترټولو مشهوري او له ګڼې ګوڼي په ډکه سیمه کي وه دخلکو دنه ورتګ له امله دسټاکهولم په ښاروالۍ پلورل شوې ده.

دکلیسارئیس بوبورګلونډ ویلي، چي له ډیري مودې راهیسې- خلک کلیسا ته دعبادت لپاره نه ورتلل، چي له امله یې کلیسا تړل شوې وه، دنوموړي په خبره، چي همدا لامل وو، چي کلیسا یې وپلورله.

دا کلیسا په ۱۸۷۶ کال کي د۵۷۵ مترو په لویوالي جوړه شوې وه.

دکلیساد‌پلورلو په دواطلبۍ کي زیات شمېرکسانو برخه اخیستې وه، ځینو کسانو غوښتل، چي دا کلیساپه نائټ کلب بدله کړي او ځینونورو کسانو بیادنورو موخو لپاره دکلیسا اخیستل غوښتل، چي دسټاکهولم ښاروالۍ دغه داوطلبي دګټله.

دسټاکهولم ښاروال ویلي، چي دوی غواړي په دغې کلیسا کي دکانفرانس لپاره ستر سالون او دکلتوري فعالیتونو دترسره کولو لپاره مرکز پکي جوړ کړي.

په سویډن کي دنورو غربي هیوادونو په څېر سلګونه کلیساوي تړل شوي دي.

دسویډن دکلیسادټولني رئیس ویلي، چي دسویډن خلک له کلیساوو ډیر لري شوي دي او اوس هیڅوک کلیساوو ته نه ورځي، دنوموړي په خبره، چي آن دکلیساوو غړي هم په میاشتو میاشتو کلیساوو ته سر نه ورښکاروي.

دسویډن دکلیسادټولني مشر ویلي، چي یوازي په ۲۰۱۴ کال کي څه کم یومیلیون کسانو دکلیساوو غړیتوب پرې ایښی دی.

دیادوني وړ ده، چي په اروپا او امریکاکي زرګونه کلیساوي تړل شوي دي، چي لامل یې له عیسویت څخه دخلکو کرکه ښودل کیږي.

# شيخ القرآن والحديث محمود شاه تيلوي رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ

## ژوند او آند!!

شک نشته، چې دعالم مړينه دعالم مړينه ده ،علماء دټولنې معماران ، مشالونه او لار ورکی بشريت دجهالت او ظلمت له تيارو څخه دهدايت روښنايي ته په خپلي دعوتي او حکيمانه ژبه راوباسي او دبي لاريتوب څخه ورته نجات ورکوي ،رښتيا هم ، لکه په يوه حديث چې کې راځي (وإن فضل العالم على العابد كفضل القمر على سائر الكواكب . أن العلماء ورثة الأنبياء لم يورثوا دينارا ولا درهما . إنما ورثوا العلم . فمن أخذه أخذ بحظ وافر ) سنن ابن ماجه) ژ: دعالم فضيلت په عابد باندې دومره زيات دی لکه دخوارلسمې سپوږمۍ رڼا چې له نوروستوروڅخه ډيره ده ،او يقيناً علماء دپيغمبرانوعليهم الاسلام وارثان دي او پيغمبرانو عليهم السلام دينار او درهم په ميراث کې نه دی پريښی، بلکې ددوئ څخه په ميراث کې علم پاتي دی ،نوچاچې دا ترلاسه کړ ، نو ده يوه لويه حصه خپله کړه ؛

ددې فوق الذکرحديث نه دعلماوو منزلت او مقام جوتيږي، چې وفات يې شاته همدومره لويه تشه يا خلا پيدا کوي او ستره ضايعه وي، لکه يوه بل حديث شريف کې چې راغلي دي : عن

أبي الدرداء قال سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول موت العالم مصيبة لا تجبر وثلمة لا تسدوهو نجم طمس وموت قبيلة أيسر لي من موت عالم . رواه الطبراني في الكبير وفيه عثمان بن أيمن ولم أر من ذكره وكذلك اسماعيل بن صالح /(مجمع الزوايد للهيثمي)،

- موت العالم ثلمة (ثلمة: الثلمة: الخلل في الحائط وغيره. المختار ٦٤. ب) في الإسلام لاتسد مااختلف الليل والنهار٪البزار - عن عائشة؛ ابن لال - عن ابن عمر وعن جابر. (كنزالعمال).

ژ:حضرت ابودرداءرضی الله تعالی عنه روايت کوي ،چې له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه مې اوريدلې دي، چې فرمايل به يې! چې دعالم مړينه يو داسې مصيبت دی، چې جبيره يې نه کيږي او داسې درځ يا سوری دی، چې نه بنديږي يا نه مرمت کيږي (داسلام)په ديوال کې )اودا يو داسې ستوری و ،چې بي نوره شواو دقبيلې مړينه راته دعالم له مړينې اسانه ده /پورتنی دويم حديث کنزالعمال رانقل کړی ،چې دعالم مړينه يې په اسلام کې داسې سوری يا درځ بللی، چې ترهغې پورې به بند نشي، ترڅو چې شپه اوورځ مختلف کيږي .......

عصر حاضر کې کې چې دفتنو غبار او لوخړو دځمکې مخ پوښلی او داسلام داعيان او مبلغين کم تر سترګو کيږي ،د قرآن کريم تکړه مفسر ـ،شيخ الحديث ،فقيه ،مورخ ،زاهد،مجاهد، صاحب طريقت او دحنفي مذهب ديوه ستر علمبردار په صفت شيخ القرآن والحديث حضرت مولينا محمود شاه تيلوي نورالله مرقده، يو له هغو پسنديده ووعلماوو څخه و،چې مدرسه کې نوموتی مدرس ،دجومات محراب کې تکړه امام اودمنبرپرسرواعظ او خطيب ،دروسانو ديرغل پر وخت دجهاد د مورچلونو اتل مجاهد او قوماندان ،دګڼو کتابونو مصنف ،مؤلف او شارح ؛سياست پوه ،ښه قضاوت پوه ،دحنفي مذهب ستر مناظر او مدافع ،دربښتونې طريقت

او تصوف له باطني اسرارسرو ، مقاماتواو علم لدني دصوفيانه قافلو همنوا،او دامريکايي تاړاک پرخلاف داسلامي امارت دجهادي او دعوتي ليکوهغه خورا فعال داعي اومتعهد و،چې دخپل اخلاص او علمي نبوغ له برکته بالاخره داسلامي امارت د شيوخو او بيا دقضايي کميسون دتميز په منل شويواعضاووکې تر پايه پاتي او خپله ايماني او ديني دنده يې تر خپله وسه سرته ورسوله!

### زوکړه او وفات :

شيخ محمود شاه تيلوي رح دلغمان ولايت دعليشنگ ولسوالۍ دتيلي کلي په ميل درې کې دالحاج مؤمن خان کره په (۱۳۳۰هش کال /۲۷/۵)نيټه زوکړی دی او بيا يې په(۱۳۹۳هش کال دحوت دمياشتې په ۲۶نيټه ) د(۶۳)کالو په عمر دورپيښې ناروغۍ له امله دپېښور د حيات آباد په کمپليکس روغتون کې دسه شنبه په شپه دوه نيمې بجې خپل حقيقي مالک ته روح وسپاره او دنصرت ميني /شمشتو په هديره کې پداسې حال کې چې زرگونه علماء ،طالبان ،مجاهدين او عام مهاجرين او انصار يې وروستې ديدن او جنازې ته ورغلي ووا و داوښکو تويولو اودهر لورې د وير ساندې اوريدل کيدې خاورو ته وسپارل شو.

### دعلم تحصيل اود طالبۍ پړاوونه :

شيخ الحديث محمودشاه تيلوي رح خپلې لومړنۍ ديني زده کړې، دلغمان په پلرني ټاټوبې کې له مختلفو علماوو څخه کړې ،چې دځونومونه يې دادي : مشهور منطقي عالم چې په (خادم اسلام) مشهور او خپل نوم يې مولوي گل دين صيب و،نامتوفقهي عالم احمد علي مولوي صيب او بل مشهور عالم مولوي درويش صيب ،چې دکابل په چارآسياب کې يې دتدريس او امامت ديني خدمات انجامول کول .....دڅه وخت نه وروسته دمتباقي علوموددتحصيل لپاره پاکستان ته لاړاو هلته يې درستم سيمې په مدرسه او بيا دمردان بازار په قياميه مدرسه کې فنون تکميل اود صغرى دوره يا موقوف عليه يې هلته له جيدو علماوو څخه ولوسته ،چې ددوره حديث اود صحاحو دلوستلو لپاره دخيبر پښتونخوا چارسدې ته لاړ او هلته يې دمولينا سميع الحق او دشيخ الحديث مولينا حسن جان رح څخه احاديث پداسې وخت کې ولوستل ،چې هغه نوموړی تازه د مديني منورې له جامعې څخه فارغ شوی و،او نوموړې شيخ صيب له همدې علمي کانون څخه دفضيلت دستار هم په سرکړی ،دويم ځل يې بيا دوره حديث په دارالعلوم سرحد پشاور کې له مشهور عالم حضرت مولينا محمد ايوب جان بنوري رح ،مولينا پاينده محمد،مفتي عبداللطيف صيب څخه او بيا تبرکاً دکراچۍ دنيو ټاون دباني او مهتمم ،نامتو عالم او محدث حضرت مولينا محمد يوسف بنوري رح څخه لوستې ده،چې له ښه بخته يې په (۱۹۷۲ز)کال کې دوفاق المدارس العاليه په ازموينه کې تر شموليت وروسته په اعلى درجه فارغ شوی دی ،نوموړې دطالبۍ او تحصيل ټول وخت (۱۳)کاله وو، دې پدې ديارلسو کلونو کې وکړای شول ،چې له گڼو علماوو څخه علمي فيوضات لاس ته راوړي .

### تدريسي او تعليمي بوختياوې :

له دستاربندۍ او فراغت څخه وروسته دسرحد مدرسې مهتمم او شيخ الحديث حضرت مولينا محمد ايوب جان بنوري رح په لاربښوونه دپښتونخوا د دير سيمې کې يوې مدرسې ته دمدرس په صفت لاړه، تردې وروسته خپل پلرنۍ سيمې ته لاړ اوهلته يې په تدريس او خطابت پيل وکړ،ترڅو چې پاکستان ته دهجرت لړۍ پيل شوه،دهجرت په ديار کې نوموړي دچارسدې دفيض الاسلام مدرسه ،دچارسدې دميرزاډهيرجامعه مليه ،دچارسدې دتنگي په جامعه اسلاميه او هم دهجرت په پنډغالې شمشتو وچ نهر کې دامام محمد بن حسن شيباني رح په جامعه کې په مختلفو پړاوونوکې تدريسي چارې سرته رسولې دي .

کله چې دافغان مسلمان ولس او مجاهدينو دقربانيو په برکت افغانستان دکمونستانو څخه آزاداو دنجيب حکومت نسکور شو،نو شيخ صيب هم دنورو افغانانو ورونو غوندې خپل هيواد ته ستون شو،هلته دلغمان دمرکزي جامع جومات دخطيب په صفت وټاکل شو،اوچې کله بيا داسلامي امارت مجاهدين هلته واکمن شول، نو دامهال حضرت شيخ رح دلغمان په ستره مدرسه جامعه رحمانيه کې دشيخ الحديث او مدرس په توگه علمي او ديني خدمات انجام کړل .

دامريکایانواو دلویدیځو اشربـانو ترغوبـل او سفاک یرغـل نـه وروسته ،حضرت شیخ رح بیا پـه هجـرت مجبـور شو او لـه رواني یـا فزیکي جهـاد سربیـره یـې خپلـې تدریسـې چـارې، دپخـوا پـه شـان مستدامې وساتلې، داځل یې دپیښور په حدیقة العلوم مدرسـه او بیـا دپیښوردسیمې پـه ختیځـې سیمې ارمړو روډتعلیم القـرآن والسـنة مدرسه کې دصدر المدرسین او شیخ الحدیث په صفت پـه سـپیڅلې خدمت بوخت شو،همداسې یې دشمشتودهجرت پنډغالې دیوه غټ جومات چې دکلینیک په جومات شـهرت درلـوده ،دامـامتۍ سربیـره یې له ماسپخین وروسته هم طالبـانو تـه پـه یـوه مدرسـه دارالعلـوم نعمانیه کې دوره حدیث پیل کړه وه، چې لـه نیکـه مرغـه دعلـم پـه معطره فضاء کې یې ډیرهغه طالبـان چـې دعلـم تـږې او دحـدیثو او علم فقه مینه وال وو، په خپل متبحر علم مـاړه کـړل او ددوئ تنـده یې تر ډیره بریده ماته کړه ، ښه ډیر شـاگردان او دنبـوي ص علـم حاملین یې ټولنې ته وړاندې کړل او خپل ژونـد یـې دیـوه امانـت پـه ډول پای ته ورساوه .

له بده مرغه چې داجل استازې تـرې دصحاح سته وو لکـه بخاري ، ترمذي ،ابوداوداو مسلم شریـف غونـدې کتـابونو سبقونه نیگړې پاتي کړل او دروان تعلیمي کـال دعلـم دمینـه والـو طالبـانو هیلـې یـې نیمـه خـوا پـاتې شـوي او دا حضرت تـرې بلـې دنیـا تـه وکوچید.

**دکمونیزم پر خلاف وسله وال جهاد :**

کله چې په (۱۳۵۷هـ ش)کال کې دثور پـه اوومـه دنورمحمـد ترکي پـه مشرۍ کمونسـتانو کودتـاه وکـړه او دهـورا ،کـور ،ډوډوۍ کالي اونور شعارونه یې پیل کړل، نودامهال شیخ محمودشاه تیلوي رح د کندزپه خواجه غلکان کې تدریس اودامامتۍ پـه دیني خـدمت کې مصروف و،هماغـه مهـال یـې خپـل ټـاټوبي (لغـمان )تـه ځـان ورساوه اودکمونستانودعزایمو پـرخلاف یـې دې ولایـت کـې ولسـونه جهــادي پــاڅون تــه چمتوکــول ،دامهــال چــې نــورو جهــادي تنظیمونوعملي شتون لغمان کې نـه درلود،نوموړې دخپـل اسلامي فراست له مخې پـه جهـادي تحرکـاتواو تبلیغـاتودلغمان ولـس کـې دکمونستانو خلاف روحیه تقویه کوله او له املـه یـې دهمـدې شیخ الحدیث

ترمشرتابه لانـدې، ددې ولایـت د دولـت شـاه پـه ولسـوالۍ مجاهــدینو ځــوځلې وســله والــې حملــې وکــړې او پــه خلقیــانو او پرچمیانویې دلغمان ددولت شاه دگڼ نفوذه سـیمې ارتـه کـره تنگـه کړه ،همدې ورځو او شپو کې دنورستان لـه لارې مجاهـدین لغـمان ته راغلل، چې له نیکه شامته هغوئ هـم دشیخ محمودشـاه رح تـر قوماندې لانـدې پـر خلقـي واکمنوبریدونـه پیـل کـړل،خـو کلـه چـې نورجهادي تنظیمونـه سیمه تـه ننوتـل شیخ صیب رح بیـا لـه کـوم مشخص تنظیم سره برخه وانه خسته ،دهجرت لاره یې انتخـاب او دنورستان کونړله لارې دپاکستان باجوړ او بیا مردان ته مهاجر شو.

**دامریکایي اشغال غندل :**

لکه مخکې مو چې ورته نغوتـه وکـړه، کلـه چـې لویـدیځ والـو یرغلگرو افغانستان باندې ظالمانه برید وکړاو افغانستان یې مستعمره کړ ،نو حضرت شـیخ رح یـو دهغـو علـماوواو طالبـانو څخـه و،چې دهجرت او جهاد لاره یې خپله کړه او دمجاهدینو علمـي او جهـادي وړتیاپه روزلو کې یې ونډه اخسته ،نوموړې به ویل چې دې جهادکې ځوک برخـه وانخلـي خاتمـه یـې ماتـه خطرناکـه ښکاري ،اوددې جهاد شهیدان به انشاءالله تعالی دبدر او احددهغې غوندې درجات لري .

**تصنیفات او تالیفات**

پـدې سربیـره چـې افغـاني علـماوو تـه دعلمـي او مسـلکي بوختیاوو اسانتیاوې ډیرې کمې برابریږي او له فراغت وروسته بیـا هـم پـه ډیـر و نامسـاعدو شرایطـوکې اوسـیږي،نه ورتـه دوخـت حکومتونه کومـه پاملرنـه کـوي او نـه دپخـوا غونـدې کـوم اسلامي خلافت شته، چې دعلماوو،خطیبانو او دیني مراکزو تمویـل او مـالي سپوټ وکـړي ،خـو بیـا هـم مسـلمان ولسـونه او علـماء ددې اغزنـو حـالاتو پـه چاپیریـال کـې ارام نـه کښـیني ، خپـل دینـي او علمـي خدمات دڅا دملاتپونې او هڅونې پـورې نـه ځنـډوي، بلکـې دخپـل وس سره سم هاغسې خدمات کوي ،چې دکوم هوسا هیـواد علـماء یې هم نشي کولای ،حضرت شیخ محمود شاه صیب رح یو له هغـو

هڅاندو او زیارکښو علماوو څخه و، چې ددې سربیره چې کورنی اقتصاد یې نهایې ضعیف او دروغتیا له پلوه هم دناروغیو ښکار و، خو بیا هم هاغسې علمي کارنامې او شهکارونه یې پنځولې، چې لوستونکي دده د آثارو تر مطالعې وروسته ځانته هیښ کولای شي .

حضرت شیخ رح یو له هغو علمي ستو څخه دی، چې د حالاتو دګوانښونو سربیره یې قلم ندی ایښی او نه دقلم سیاهي وچې کړې ،که طالبانو ته به یې تدریسونه کول او جومات کې به یې امامتې کولې ،نو همهاله یې ورسره دقلم سیاهي دلیکلو جوګه ساتلي او دومره تصنیفات یې خپل ولس او مسلمانانو ته په وراثت کې پریښي، چې دده غونډې مصروف انسان نه یې چا تصور نشو کولای ،دحضرت شیخ محمود شاه منځنی ورور او دده (۳۵)کلن خدمتګار محترم مولوي کریم شاه صیب وایې :چې شیخ صیب رح نه دورځې ارام وو نه دشپې ،دورځې علمي،قضایي او ښوونیزې بوختیاوې او دشپې مهال دضخیمو کتابونو اوږده مطالعه اوپه عبادت کې دومره ډیر ریاضت ،چې دده څخه کله صلوة تهجد ندې قضاء شوي ،او ناروغۍ هم کله ډیر ندی پریښی .

مختصراً به دنومورې شیخ صیب رح چاپ او نا چاپ آثار یوازې دنومونوپه یادولو سره قلمبند کړو!

### چاپ شوي آثار یا کتابونه :

۱-مشیرالغرام شرح بلوغ المرام درې جلده .
۲-هدایة الطالب الی ما یستند الی المطالب .
۳-شم الریحان من مناقب ابی حنیفة النعمان .
٤-القول المفید فی بیان الاجتهاد والتقلید.
٥-الوردالسنیة فی ادلة الحنفیة ...

### ناچاپ آثار :

۱-عین الصفافی تاریخ المصطفی .
۲-جواهرالفریدة شرح قصیده برده.
۳-تزیین الفرش المسوی فی تفسیرقوله تعالی الرحمن علی العرش استوی .
٤-تحسین البشارة لسنیة الاشارة /یعنی الاشارة بالسبابة فی التشهد.
٥-الاسوة فی الحجاب وآداب النبوة .
٦-حصول السعادة فی فضائل الجهادواسباب الشهادة .
۷-الکلام الصبیح فی تعیین الذبیح .
۸-تخریج احادیث شرح شیخ الاسلام علی السراجی فی الفرائض .
۹-تخریج احادیث شرح عقائد.
۱۰-ازالة الاوهاج عن ترک القرآءةخلف الامام .
۱۱-جلاء العینین فی ادلة ترک رفع الیدین .
۱۲-مجموعه فتاوی (چې شیخ صیب رح دخلکو دپوښتنو او ځوابونونه جوړه کړې ده .
۱۳-تلخیص شرح نخبة فی اصول الفقه .
١٤-شرح الصدر فی تحقیق مسائل النذر.
۱۵-لمعانیة فی مسائل ثمانیة.

اوداسې نور..........

### دطریقت او تصوف لاره

حضرت شیخ محمود شاه تیلوي رح صاحب طریقت او دعلم لدني دکراماتو آثار یې مخ او تندي کې له ورایه ښکاریدل،نومورې دنقشبندیه طریقې په سلسله کې شامل و،نومورې چې کله دمردان په قیامیه مدرسه کې طالب و،نو هغه وخت یې دحضرت مولینانصیرالدین غرغشتورح له مرید مولینا امیرمحمد کندهاري صیب نه په نقشبندیه سلسله کې بیعت وکړ،نومورې دمرحوم شیخ صیب رح هم استاد ، پیر او مرشد و، څه وخت وروسته له مراحلو له تکمیل نه پس دده خلیفه مجاز شو،مرحوم شیخ صیب رح مریدان هم درلودل، خو ډیره بوختیا یې درس او تدریس کې وه، نو ځکه یې دعلم طریقت څخه دعلم شریعت شاګردان ډیر روزلې دي .

### شریعت او طریقت

شیخ محمود شاه تیلوي رح دشریعت او طریقت (دعلم ظاهري او باطني )دتلازم یو حسن امتزاج او ښه مصداق و،زمونږ ډیر متبحر علماء داسې وي ،چې علم ظاهري ورسره وي ،په شرایعو ښه پوهیږي مگر هغه چې علم لدنی ورته وایې، هغه چې

ریاضت ،زهد او داحسان ددرجې تقوی غواړې ترې بې برخې وي ،خو بل طرف ته ددیوبند اکابر علماء چې زیات یې ددواړو علومو نه بهرمند دي ،همداسې دافغانستان او پاکستان اهل سنت والجماعت علماء (لله الحمد) ددې دواړو بحرونو څخه بهرمند دي ،ددوئ په زمره کې ددې عصر متبحر عالم او صوفي شیخ محمود شاه رح هم دی، چې دشریعت او طریقت دتلازم مصداق و او ددې دواړو سیلابونو څخه یې ډیره بهره اخستې وه، لکه په البحرالمدید کې لیکي :

من تحقق ولم يتشرع فقد تزندق، ومن تشرع ولم يتصوف فقد تفسق، ومن جمع بينهما فقد تحقق، جعلنا الله ممن تحقق بهما. وسلك على مهاجهما إلى الممات (البحرالمديدفى تفسيرالقران المجيد) .

## دحضرت شیخ رح شخصي ژوند:

دشیخ الحدیث محمودشاه تیلوي رح ژوند لکه دنورو عامو علماوو متوسط او داقتصاد له پلوه ډیر ښه نه و،نوموړی دخپل غیور فقر سربیره ډیرمستغني او خپلې ډیرې استغناء دفقر په پولو ودرولی و،نه خو دصدراسلام دخلافت دوخت بیت المال شته، چې دیوه عالم ،مدرس خطیب او عامل کفایه ورکړي او نه هم علماء دعامو خلکو په څیر سوداګریزاو تجارتي چارو ته وزګاریري ،نو حتمي ده، چې دیوه ( قوت لایموت) ژوند درلودونکې به وي ،همدا اوس نوموړې رح شاته یو غني کتابتون پریښی، خو دکور نور اقتصادي حالت به یې شاید ګوزاره حال غوندې هم نه وي ،خو استغناء یې دیوه ډیر لوی بډایه هم ډیره وه ،مرحوم نه غوښتل چې خپل علم او دپیغمبرانو علیهم السلام میراث ددنیا په غبار او کدورت کې ګردجن کړي ،نو یې ځکه تر شا کومه مالي پانګه نده پریښې، بلکې هغه چې یې پریښې ده، هغه دعلم او تعلیم ویاړمنه پانګه ده، هغه چې اوس به یې آخري آرمګاه کې په درد دواشوي وي لکه پدې حدیث شریف کې چې راځي (عن أبي هريرة رضى الله تعالى عنه أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال إذا مات الإنسان انقطع عمله إلا من ثلاث صدقة جارية وعلم ينتفع به وولد صالح يدعو له قال أبو عيسى هذا حديث حسن صحيح /الجامع الصحيح الترمذى)

## حسنه اخلاق او عواطف :

ورین تندی ،بشاشت ،له تبسم نه ډکه خوله ،د محبت پراخه غیږه ،عطوفت او مهرباني دحضرت شیخ محمود شاه رح هغه لاینفک او متلازم خصایل او عادتونه وو،چې کله به ترې نه جدا کیدل ،یو عجیب عادت یې داوه، چې له چاسره به یو کرت بلد شو،نو چې څه وخت وروسته به مخامخ ،داسې کوم ډول بي پروایي به یې ترې نه کوله، چې هغه ترې متنفر شي، بلکې دکشش او جذب ماده پکې ډیره وه، نور به یې هم ځانته تشویقاوه اوداسې برخورد به یې درسره وکړ،چې دا به یې دځان پورې خجالت کړ ،میلمه پالنه او دمیلمه سره اړوده ناسته یې په حسنه اخلاقو اومسنونو عاداتو کې شمیرلای شو،چې همدا صفات ښتن تعالی همده کې ځایه کړي وو،لنډه دا چې دخپل ځان پخپله یو ښه مثال او بیلګه وه او بس !

## کرامات او بزرګي :

دکره معلوماتو له قراره ، نوموړې به زیات وخت حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په خوب کې کوت ،یوځل یوه متدین شخص خوب کې رسول الله صلی الله علیه وسلم وکوت او ورته یې وویل :چې محمدشاه (شیخ صیب)تهووایه! چې خلک لمونځونه کوي، روژې هم نیسي خو دشپې مهال کمپیوتر ،نیټ او مبایل کې فحش فلمونه ګوري ،چې داسې کارونه فحشاء او ددوئ لپاره هلاکت دی، هماغه وو،چې شیخ صیب پدې مورد کې یو ښه تقریر وکړ،چې یوه تقریرسره یې دښوونځیو شاګردانو نږدې (۵۰۰)ممیورې ګاني ماتې کړي او خپل رب ته یې رجوع وکړه ،خو تردې هم دکرامت ډیره بارزه نښه هغه وه، چې دنورو خلکو په څیرددې سوانحو (لیکوال )هم مشاهده کړي، چې په لنډه ټکیو کې به یې ستاسو لوستونکیو مخکې کنبیږدم :

شیخ محمود شاه صیب رح باندې دالهي تقدیر سره سم د(۲۰۱۴ز)کال داکتوبر په (۲۰)نیټه پداسې وخت کې دفالج حمله راغله، چې نوموړی مدرسې ته روانیدونکی و،دنوموړې دیوه طرف مخ ،لاس او پښې یې مفلوجې کړلې او ددنیا خواږه پرې ترخه شول ،نوموړې باندې دناروغۍ څه وخت تیر شو،چې یوه بل متدین

شخص دشپې په وروستي ثلث کې خوب کې حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم وکوت،هغه ص ورته یو (چاینک )ورکړاو ورته یې وویل :چې دا چاینک ونیسه ،بیا ورته رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپل لاس مبارک باندې چاینک کې شیدي واچولي ،او دې شخص ته یې وویل !چې دا دوه پیالي شیدې مولوي محمود شاه ته ورکړه ،چې ددې شیدو څخه به یو ګیلاس پخپله او بل ددوئ کور کې بل څوک یې ورته ښودلی وترینه وڅښي او دا چاینک زما لخوا نه ورته تحفه ده ،کله چې نوموړی شخص له خوبه ویښ شو ،ګوري چې چاینک یې له شیدو سره خواکې ایښی دی ،دسهار له لمانځه نه وروسته یې شیخ رح ته چاینک راوړ او خواب یې هم ورته بیان کړ، شیخ صیب رح ترې طبق ارشاد یو ګیلاس شیدې وڅښلې ،دنوموړي دکورنۍ دوینا مطابق چې دمګړی یې مفلوجو اعضاوو باندې خارښ راغی او پخپله یې حرکت شروع کړ ،چې ورثه وو یې دحسن میراث په پار اوس هم چاینک ساتلی .

ددې خوب او چاینک خبره عام خاص خلکو کې ډیره په سرعت سره خپره شوه او خلک ددې چاینک ملاقات ته ورتلل، یوه ورځ (لیکوال ) هم ورغی ، شیخ صیب رح ورته هغه چاینک راوایست ګوري چې ډیره معطره خوشبویې ترې تله او دیوه مسلمان په حیثیت مې دځه وخت لپاره دخپل خواږه پیغمبر صلی الله علیه وسلم ارشاداتو او معجزاتو ته ذهن لاړ او داسې څه مې تر سترګو شول، چې دخپل پیغمبر حضرت محمدصلی الله علیه مینه مې پرې ماته شوه ،همدلته مې له مرحوم شیخ الحدیث محمود شاه تیلوي رح سره اږود ملاقات او علمي مسایل هم بحث کړل ،نوموړې چې زما سره قلبي محبت او دعقیدت رازونه درلودل ،راته یې وویل :چې که داخوب ماکتلی وی ،نو به بیا دشک احتمال پکې ځینو خلکو پیدا کاوه ،اوس خو دا خوب زما په باب یوه بل مخلص مسلمان کتلی او ورته یې ویلې ،چې دا چاینک خلکو ته وښایه ،نو ځکه مې له چانه پټ نه کړای شو....

زما (لیکوال)خپلې انګیرنې او مشاهدات دده، په هکله هغه دي، چې له ټولو څخه دده علمیت ،تقوی ،زهد او کرامات معلومیږي ،دده دوفات په شپه ډیرو خلکو داسې ویرونکي خوبونه کتلي وو،چې له ورایه یې تعبیراتو کې معلومیږي، چې نوموړی صاحب کرامت او په وجود یې دډیرو بلاوومخه بنده وه ،لکه څنګه چې علامه ابن حجر الهیتمي پخپله (الفتاوی الحدیثیة ج۱ص۷۵٦) کې لیکي چې (رجال الغیب) لاهم دځمکې پر مخ دقطب ،اوتادو ،ابدالو ،نجباوو او نقباوو په صورتونوکې شته اوبیا پسې لیکي چې :........ فإذا أراد الله قیام الساعة أماتهم أجمیعین ، وذلك أن الله یدفع عن عباده البلاء بهم وینزل بهم قطر السماء .... الفتاوی الحدیثیة لابن حجر الهیتمي ج۱ص۷۵٦)،نوداسې ښکاري چې دشیخ محمودشاه رح ولایت او کرامت هم هغه حقیقت و،چې دوستان څه چې دده مذهبي خوابدي به هم ترې سترګې پټې نکړای شي، دمعلوماتو دقراره چې نوموړی دشمشتو په پنډغالي کې دحنفي مذهب یو ستر مدافع او مناظر و،چې دمذهب مخالفینو یې دخپل قوت سربیره بیا هم مقابله ونکړای شوه او ترپایه یې دتفسیر او احادیثوپه درس کې پر تقلید او مذهب ددوئ دنیوکو ځوابونه ویل ،خو دمخالفینونه غلبه دده دحقانیت او کرامت څرګنده نښه بلل کیدای شي ،خو ترټولولوی کرامت یې هغه مهال خلکو ته وځلید، چې کله یې دوفات هنګامه خلکو کې خپره شوه او دعام اوخاص خلکو له سترګو څخه داوښکو سیندونه بهیدل پیل شواو دنوموړي جنازه دومره ستر ه او مهاجرینو او انصارو په ګډون دومره ګڼ شمیره او غټه شوه ،چې دځایي خلکو په وینا دشمشتوپه تاریخ کې چې ډیر شخصیتونه دلته وفات شوي، مګر دشیخ رح غونډې لویه جنازه یې کله نه ده شوي ،تردې چې هغه خلکو چې دده دفکر خلاف وو ،هم جنازې ته ورغلل او ګوته په غاښ شول،او په خپل مخالفت پښیمانه شول ، دده دکراماتو کرشمې ډیرې دي خو نه ټولې ماته یادې دي ،اونه ترې لا خبر یم ،داخو هغه وي چې ټولو خلکو ولیدلې او ترې انکار هم نشي کیدای !

**پاتې ورثه :**

دشیخ محمود شاه تیلوي رح والد صیب محترم دده په ژوند کې په (۲۰۱۲ز)کال کې دهجرت په پنډغالي وفات شوی ،خو له نیکه مرغه چې لا اوس یې هم والده ژوندۍ ده ، له بده مرغه چې حضرت شیخ مرحوم درې کډې لري، خو نه یې نارینه او نه یې



ډاکټر بریالي بختیار

# رادار څه شی دی

## او څه ډول کار کوي ؟

ویل کېږي . رادار داواز دانعکاس په اساس عمل کوي.

صوتي امواج له یو مانع سره په لګېدو انعکاس پیدا کوي . په همدې ډول راډیویي څپې چې الکترو مقناطیسي امواج دي هم چې کله دخپل مسیر په لاره کې له کوم مانع سره ولګېږي ، نومنعکس کېږي . دراډیویي امواجو دغه ډول ځانګړتیا پوهانو په ۱۹۳۰ ع کې کشف کړه.

له همدغه خصوصیت نه په ګټې اخیستو سره په ۱۹۳۵ع کال کې په امریکا کې درادار پنځه مرکزونه تاسیس شول.

درادار په برخه کې پراختیا ددویمې نړیوالې جګړې په مهال رامنځ ته شوه . دغه پرمختګ ددښمن په بم غورځونې په ریډیا یي کولو کې ډېره مرسته وکړه . له هغه وخت تراوسه پورې بېلابېل رادارونه جوړ شول . نن ورځ داسې رادارونو شتون موندلی ، چې دبې پیلوټه فضایي بېړۍ په کنټرولولو او رهبري کولو کې ورڅخه استفاده کېږي.

رادار د آب وهوا او جوی حالاتو په اړه هم داړتیا وړ اطلاعات او معلومات دانسان په واک کې ورکوي . آیا په دې پوهېدلي یاست.

چې رادار څنګه کار کوي؟ رادار له راډیویي څپو نه کار اخلي کټ مټ داسې لکه د راډیویي خپرونو ، خو هغه راډیویي امواج چې په رادار کې ورنه استفاده کېږي ، دلوړو فرکوانسونو لرونکی دی اوهغوی ته مایکرو ویو یانې کوچني امواج وایي . ددغو څپو سرعت د نور له سرعت سره ۳x ۱۰ یو برابر دی . یعنې

په یوه ثانیه کې درادار مرکز یو لېږدونکی لري ، چې راډیویي امواج دانتن په مرسته دجسم خوا ته لېږدوي . همداراز یو آخذه لرونکې آله هم لري ، چې منعکس شوي راډیویي امواج رانیسي.

دا آخذه یو صفحه هم لري ، چې په فضا کې دجسم موقعیت ښیي.

رادار په اتو ماتیک تجهیزاتو سنبال وي ، چې ټول اړونده عملیات ترسره کوي . پخوا رادار ډېر غټ جوړ شوی و ، خو اوس دومره کوچنی رادار جوړ شوی دی ، چې دلاس په ورغوي کې هم ځایېږي.

ښخینه اولاد شته ،او دښښتن تعالی لدې امتحان سره تر وفاته پورې مخامخ وو،نوموړی پنځه ورونه لري ،چې علماء ،حافظان او مجاهدین دي ،چې دنومونو په یادولو سره به یې بسنه وکړو،الحاج ملاعبدالله شاه صیب ۱-شیخ الحدیث مولوي ولي شاه صیب ،۳-قاري حافظ ملاسیدشاه ،۴-مولوي کریم شاه صیب او مفتي عبدالنور صیب ،په ټولیزه بنه به ووایو چې دشیخ محمود شاه رح له برکته ددوئ دکورنۍ نارینه او ښځینه ځوانان خافظان ،علماء او داسلامي دین په چوپړ بوخت دي!

همدا اوس ددوئ شخصي کور کې دبناتو مدرسه جریان لري او دلیرو پرتو کورنیو بنات ورته تعلم ته راځي .

الله جل جلاله دې دحضرت شیخ رح قبر له انوارو ډک ،دجنت دباغچونه یوه باغچې او جنت الفردوس کې دې ورته ځای ورکړي .آمین

قال حسان :
ولو كانت الدنيا تدوم بأهلها
لكان رسول الله فيها مخلداً

همدرد

# ..... دتوهین تازه مردود جسارت!

## دغرب دناروغ ذهنیت عکاس دی!

په غرب کې دلږ څنډ وروسته یو ځل بیا دازادۍ اظهار په نامه د ټاکلي پلان سره سم داسلام دمبارک دین د ستر پیغمبر(صلی الله علیه وسلم) په مبارک شان کې گستاخانه کاریکاتورونه خپرول دغربیانو دناروغه متعصب ذهنیت عکاسي کوي، چې پرلپسې دمسلمانانو د دیني جذباتو مجروحولو او اشتعالولو ته ازادي وایي.

دا مردوده لړۍ دڅو کلونو راپه دیخوا دوام لري، نوې تازه پېښه دامریکا ټېکساس ایالت کې دگستاخانه کارټونوهغه انعامي سیالۍ وه، چې پرضد یې دسیمې دوه مسلمانانو پخپل فطري غبرگون ښودو ددې لوی نه ښنونکي جنایت په ارتکاب کوونکو د برید هڅه وکړه، چې دواړه دامنیتي پولیسو لخوا په ځوابي ډزو کې په شهادت ورسیدل (انا لله وانا الیه راجعون)

دسپینې ماڼۍ ویاند د دغو مسلمانانو دبرید په اړه رسنیو ته ویلي: هیڅکله دازادۍ په خلاف سخت دریځې جوازنلري! اوس پوښتنه داده، چې ایا دازادۍ په پلمه دنړۍ دڅه کم دوه ملیارده مسلمانانو دیني احساساتو ټکان ورکول او دهغوی جذبات مجروحول جواز لري؟ باید اومنو چې دمسلمانانو دزړونو آزارول او پرضد یې نفرتونه شیندل دغرب لخوا ټاکل شوې ستراتیژي ده، چې په اړه یې هلته دولتونهاو ولسونه یوه خوله دي او دیوټاکلي پلان له مخې دغه ډول کرکجن جسارتونه اونفرت زېږونکي گستاخانه خوځښتونوته یې کار ویلی.

تردې پورې چې دآزادۍ په نوم دغربیانو استدلال دومره پیکه او مردود دی چې پخپله ددوی مذهبی مشر( فرانسس پوپ) هم دروان کال په جنورۍ کې هغه مهال چې کله دفرانسوۍ ورځپاڼې( چارلي ایبډو) لخوا دگستاخانه کارتونونود خپرولو په ځواب کې په هغه باندې دشوي برید په اړه خپله تبصره کې وویل: چې څوک زما مورته څوک کنځل کوي!کنځل کونکی دې زمانه په قوي سوک د گذار تمه ولري!دشک پرته دا تبصره دبشري فطرت عکاس ده، حقیقت دادی چې غربي پالیسې جوړونکو په هره معامله کې دوه مخیز معیارونه غوره کړیدي، هغوی دنړۍ دڅه کم دوه ملیارد مسلمانانو له منځه ترټولو مقدس او سپېڅلي شخصیت ته سپکې سپوري ( معاذالله) ویل، لیکل ازادي بولي، او ترې ننگه کوي! حا ل داچې بل پلو دیهودي هولو کاسټ په باره کې د خولې نه یولفظ ویستل هم ممنوعه شجربولي ، چې دکتونکو په اند دغه دومخیز معیارونه داسلامي نړۍ او غرب ترمنځ دسترې فکرې جگړې یا فاصلې ښکارندوي کوي، او ښکاره ده چې غربیانو ددې جگړې لپاره لومړیتوبونه ټاکلي دي، چې پکې یو لومړیتوب یې درسول الله(صلی الله علیه وسلم) په مبارک ذات باندې د پرلپسې حملو ناوړه جسارت تکراول دي، داچې غرب داسلام او مسلمانانو سره څومره بغض لري؟ یا په دغو جسارتونو څه ترلاسه کوي؟ په دې اړه دامریکامیشتي اردوژبي لیکوال عظیم ایم میا د لیکنې لاندې اقتباس ولولئ:

دټکساس ایالت د کارلینډ نوم سیمې په یوه تالار کې دنیویارک ښار اوسیدونکې اسلام مخالف میرمنې [پاملا گیلر] لخوا داسلام دستر پیغمبر(صلی الله علیه وسلم) په سپېڅلي شان کې دفرضي کارتونونو (نقل کفر،کفرنباشد) انعامي سیالۍ جوړه شوېوه، په کومه سیالۍ کې چې دوه نیم سوه تنو دازادۍ دحق اظهارولو په نوم گډون کړی و.

ملعونو کارټون جوړونکو درسول الله (صلی الله علیه وسلم) په مبارک شان کې دازادۍ په نوم دبې ادبۍ او سپکاوي ټول حدود ونړول ،یوسپین پوستی کارټونیسټ په اړه یې دا اعلان وکړ چې هغه مخکې مسلمان و، او سیالۍ لومړی کارټون جوړونکی اعلان شو. پامیلا گیلر دازادۍ داظهار په پلمه داکار وکړ خو ښکاره ده

چې دهغې اسلام دښمنې پټه نده، هغه دامریکا په مختلفو ښارونو کې داسلام او مسلمانانو په خلاف کمپاین چلوي، نړیوال سوداګریز مرکز ته څېرمه دیو مسجد له جوړیدو سره یې د مخالفت ښودو پرمهال ویلي و:مسلمانان په پنځه وخته لمانځه کې په یهودانو او عیسویانو باندې لعنت وایي، په ښکاره ددغې شتمنې میرمنې تنظیم ( امریکن فریډم ډیفنس انی شیټو) نوم لري، خو دګوند اصلي نوم یې( اسټاف اسلامایزیشن آف امریکا) دی، کوم چې داسلام اومسلمانانو په خلاف فعالیتونه کوي او په امریکا کې داسلام اومسلمانانو پرضد نفرتونه خوروي.

د ټیکساس ایالت ګارلینډ سیمې کراسي په نوم تالار کې یې دا شرمیدلي غونډه په دې وجه جوړه کړېوه، چې څه موده وړاندې دیوې فرانسوی ورځپاڼې( چارلي ایبډو) لخوا داسلام دپیغمبر(صلی الله علیه وسلم ) په شان کې دسپکاوي کارتونونو خپریدو په غبر ګون څومسلمانا نو په فرانساه کې دیادې ورځپاڼې په دفتر په برید کې هغه کارټونسټان چې درسول الله (صلی الله علیه وسلم) د شان په سپکاوي یې څو ځله کاریکاتورونه جوړکړي وو، ووژل ، بیا دچارلې لخوا په دغه ناوړه عمل لاس پورې کړل شو، په غبر ګون کې د ګارلینډ سیمې مسلمانانو په دهمدې تالار کې درسول الله (صلی الله علیه وسلم ) د شان په احترام کې یوه غونډه جوړکړې وه،پامیلا ګیلر له نیویار څخه هلته لاړه او په هم هغه تالار کې یې درسول الله (صلی الله علیه وسلم) او مسلمانانو په باره کې دنفرت شیندلو په غرض دکارټون جوړولو سیالې جوړه کړه، په کوم کې چې مسلمانانو درسول الله ( صلی الله علیه وسلم) دشاندار سیرت لمانځلی و!

دپامیلا ګیلر ددې سبکاوي ډک عمل په غبرګون کې د همدې یادې سیمې دوه مسلمانانو د ګستاخان کارټونوپه غونډه دحملې کولو کوښښ وکړدپولیسو په وینا:دغونډې دموټرو په تم ځای کې له یو موټر څخه دوه تنو دښکته کېدو سره سم په ساتونکو پولیسو ډزې وکړې، چې په مقابل کې پولیسو هم په هغوی ډزې وکړې! او بیا دواړه هم هلته یې شهیدان کړل.

دپامیلا ګیلر داسلام دښمن ذهنیت او کردار نور ګڼ شواهد هم شته دي، چې هغه او دهغې ګوند داسلام او مسلمانانو په خلاف نفرتونه شیندي ، نیویار ک ښار کې داسلام ضد پوسترونو اوبینرونو له خورولو نیولي په ښاري چارواکو ( مسلمانانو سره دنرمښت په تور) یې د دوسیو او عریضو کولو پورې له یوه څخه هم مخ ندی ګرځولی اوس ددې برید وروسته امریکا میشت مسلمان مشرا ن کشمکش ښکاردي اوفکرمندي چې آخر دوی دامریکا یې ازادی په حدودو کې دخپلو دیني اقدارو ددفاع لپاره څه کولی شي؟

کومو دوه کسانو چې په یاده غونډې دبرید کوښښ وکړ یو ۳۴کلن نادرحمید صوفی نومید، چې په ۱۹۹۸زکې دپاکستان په پلازمینه اسلام آباد کې یې په یو نړیوال ښونځي کې زده کړې کړې ،اوبیا په امریکا کې پوهنتو هم لوستی و،تراوسه لاتحقیقات ندي بشپړ دنادر حمید یوتن ملګری وایي: هغه په امریکا کې زیږدلی و، دویم تن ۳۰کلن ایلټن سمپن( ابرایهم) و څو ک چې دښوونځي په ثانوي دوره مسلمان شوی و، او صومالیه دتلو په وجه داستخباراتي اداري ایف بې ای لخوا تر څارلاندې هم و.

اوس ددې برید ک له امله په امریکا کې یو وار بیا په مسلمانانو زمکه سورتنور شي، ځکه امریکا کې قوانین او ازادۍ شته ده، خو عملي حقایق جلا دي؛ ددغې میرمنې پشان غالي مزاج عیسویان دمسلمانانو له شتون ډارلري، هغوی نه زغمي چې لوی شمېر مسلمانان دې په امریکا کې ژوند تیرکړي! ددې لپاره هغه دوامدار کوښښ کوي څو دنفرتونو په اچولو مسلمانان مشتعل کاندي، او دعیسویانو سره یې په جنجال واړوي ، البته دامریکا دننه لوی شمېر خلک دغه عمل ښه نه بولي کله چې درسول الله (صلی الله علیه وسلم ) په شان کې دتوهین آمیزو کارټونو خپرولو خبر نشر شو، دامریکا دیولس سوه عامه تبصره کوونکو له منځه بشپړ اکثریت دغه عمل وغانده، په هغو کې ایله دوه تنه مسلمانان وونور ټول نامسلمانان وو مثلاً: یو تبصره کونکی مارک باکس دی هغه کاږي: دبل دپیغمبر په توهین دغه میرمن زړوره کیدای نشي، بلکې یواځې نفرت اچوي... یوبل دمارټن په نوم تبصره کونکی ویلي:آخر دامریکا دبیرغ توهین کونکي ولې غندل کېږي؟ دا خو هم دازادی اظهاردی... دسان فرانسسکو یوتن وایي:دامریکا په اساسي قانون کې دازادی دحق معنی دانده چې دنورو په ضد دې نفرتونه را زرغون کړای شي .لنډه داچې دامریکا خلکو اکثریت ددغه جنایت په ارتکاب کوونکو بد وایي، دهغوی دغه بد عمل غندي او په ښه سترګه ورته نه ګوري....

# حقوق حضرت عمر رضی الله عنه از بیت المال

حضرت عمر (رض) نیز تجارت می‌کرد. وقتی که خلیفه شد، برای او از بیت المال حقوقی مقرّر شد. در مدینه منوّره مردم را جمع کرده و فرمود: من پیش از این تجارت می‌کردم، حالا که شما مرا به این کار مشغول کردید به چه صورتی امرار معاش کنم؟ مردم هر کدام مقدار مختلفی را از بیت المال برای او پیشنهاد کردند؛ حضرت علی کرم الله وجهه خاموش نشسته بود. حضرت عمر (رض)از او پرسید نظر شما چیست؟ او فرمود: به طور متوسط آن چه تو را و اهل تو را کفایت کند. حضرت عمر (رض) این پیشنهاد را پسندید و مقدار متوسطی تعیین شد.

روزی حضرت علی، حضرت عثمان، حضرت زبیر، حضرت طلحه رضی الله عنهم و افراد دیگری با هم نشسته بودند و ضمن گفتگو، پیشنهاد کردند که حقوق حضرت عمر (رض) باید اضافه شود؛ چون در معاش و زندگی‌شان تنگی پیش می‌آید. ولی هیچ کس جرأت نداشت این مسئله را با حضرت عمر (رض) در میان بگذارد. بنابراین نزد دخترش حضرت حفصه رضی الله عنها که همسر آن حضرت (صلی الله علیه وسلم ) و از امّهات المؤمنین بود، رفتند تا به وسیله‌ی او اجازه‌ی موافقت حضرت عمر (رض) را در این مورد به دست آورند. و از او خواستند که اسم های آن‌ها را به حضرت عمر نگوید.

حضرت حفصه رضی الله عنها این مسئله را با حضرت عمر (رض) در میان گذاشت؛ بر چهره‌ی حضرت عمر (رض) آثار خشم و غضب ظاهر شد و فرمود: چه کسانی این پیشنهاد را کرده‌اند؟ حضرت حفصه رضی الله عنها گفت: اوّل باید رأی شما معلوم شود حضرت عمر (رض)فرمود: اگر این‌ها را می‌شناختم چنان سزای شان می‌دادم که آثار آن بر چهره‌هایشان ظاهر می‌شد. تو به من بگو، ای حفصه! بهترین لباس آن حضرت (صلی الله علیه وسلم) در خانه تو چه بود؟ او گفت: دو قطعه پارچه بود که آن حضرت (صلی الله علیه وسلم) آن‌ها را روز جمعه یا هنگام آمدن مهمانانی به نزدشان، می‌پوشید.

سپس فرمود بهترین غذایی که آن حضرت (صلی الله علیه وسلم) در نزد تو میل می‌فرمودند چه بود؟ عرض کرد: غذای ما نان جو بود. ما یک بار بر روی نان گرم، ته مانده قوطی روغن را خالی کرده چرب می‌کردیم، خود آن حضرت (صلی الله علیه وسلم) با اشتها میل می‌فرمودند و به دیگران نیز می‌دادند. حضرت عمر (رض) پرسید: بهترین بستری که در خانه تو برای آن حضرت (صلی الله علیه وسلم) پهن می‌شد، چه بود؟ حضرت حفصه رضی الله عنها گفت: یک پارچه کلفتی بود که در تابستان آن را چهار لایه کرده پهن می‌کریم و در زمستان نصف آن را پهن و نصف دیگرش را روی خود قرار می‌دادیم. آن گاه حضرت عمر (رض) به حفصه رضی الله عنها فرمود: ای حفصه! به آن‌ها بگو که رسول الله (صلی الله علیه وسلم) با عمل خوب خود نمونه و روشی را تعیین فرمودند و به امید آخرت اکتفا نمودند. من نیز پیروی ایشان را می‌کنم. مثال من و مثال دو دوست من رسول الله (صلی الله علیه وسلم) و حضرت ابوبکر صدّیق (رض) مانند آن سه نفر است که به یک راهی رفتند نفر اول توشه‌ای برداشت و رفت و به مقصد رسید نفر دوم نیز اتباع او را کرد و طبق روش او رفتار نمود او نیز به نفر اوّل رسید، سپس نفر سوّم شروع به حرکت کرد اگر بر همان روش آن دو نفر قبلی برود، پس به آن‌ها خواهد رسید و اگر خلاف روش آن‌ها برود، هرگز به آن‌ها نخواهد رسید. (اشهر)

**توضیح:** این حال شخصیتی است که پادشاهان دنیا از شنیدن نامش می‌لرزیدند با چنین وضعیت زاهدانه‌ای زندگی خود را به پایان برد. یک بار خطبه می‌خواند در حالی که لباس ایشان دوازده پیوند داشت که یکی از آن‌ها پوست بود.

یک بار برای نماز جمعه دیر تشریف آورد از مردم معذرت خواست و فرمود: به سبب شستشوی لباس دیر شد؛ چون به غیر از این لباس‌ها، لباس دیگری نداشتم. (اشهر)

یک بار حضرت عمر (رض) غذا می‌خورد، غلامش آمد و گفت: عتبه بن فرقد (رض) برای ملاقات آمده به او اجازه‌ی ورود داد و برای خوردن غذا تعارف کرد. او آمد و شریک شد؛ دید غذا به قدری خشک است که از گلو فرو نمی‌رود. گفت: غذای آرد الک شده نیز، پیدا می‌شود! حضرت عمر (رض) فرمود: آیا همه‌ی مسلمانان می‌توانند آن را تهیّه کنند و بخورند؟ او گفت: همه نمی‌توانند؛ فرمود: افسوس! شما می‌خواهید همه لذّتها را در دنیا حاصل کنم؟

# ګلخونه

الهام

## ګلان درپسې ګرزي

خومره شکلی یې ایمان درپسې ګرزي
شهادته مسلمان درپسې ګرزي

ته یې ګل غوندې حسین د غیرت ژونده
ته ډېوه یې پتنګان درپسې ګرزي

بختور یې بختورو ته ور درومې
ته هستي یې پاك ارمان درپسې ګرزي

نه تنها دي ملنګان درپسې وتي
هر په تخت سپور سلیمان درپسې ګرزي

ایمانداردي عاشقان پرتا له وخته
اورته دانګي قربانیان درپسې ګرزي

تاته مرګ ویل ګناه ابدي ژوندیې
د جنت حوري غلمان در پسې ګرزي

آزادي سره یو ځای راشه سپرلی دی
د ښتوغرو کې مو ګلان در پسې ګرزي

که دي برخه د شهید یو وړه الهامه!
د خوښیو به کاروان در پسې ګرزي

## غزل

مثل آئینه مشو محو جمال دگران
از دل و دیده فرو شوی خیال دگران

آتش از ناله مرغان حرم گیر و بسوز
آشیانی که نهادی به نهال دگران

در جهان بال و پر خویش گشودن آموز
که پریدن نتوان با پر و بال دگران

مرد آزادم و آن گونه غیورم که مرا
می توان کشت بیک جام زلال دگران

ایکه نزدیک تر از جانی و پنهان ز نگه
هجر تو خوشترم آید ز وصال دگران

### اقبال

جهان از خود برون آوردهٔ کیست؟
جمالش جلوهٔ بی پردهٔ کیست؟
مرا گوئی که از شیطان حذر کن
بگو با من که او پروردهٔ کیست؟

# سیلاب

درتــه ویــل مــي تــري جــوړیږي لــوي ســیلاب
داسي ډیــر دي ســـیلابونو کـــړل غرقـــاب

نـــه بـــه وتـــړي کلـــك بندچـــه دا حصـــارشي
کـــه تـــه راوړي دجهـــان واړه اســـباب

داکښـــتي لـــه ګـــودره خطـــا ولاړه
نـــه بـــه يـــي ونيـــسي پـــه غـــاړه ددريـــاب

دفرعـــون پـــه شـــان بـــه لاړشي لـــوي ګرداو تـــه
بيابـــه نـــه وينـــي ددي دنيـــا افتـــاب

داجداجـــدا تـــړلي يوځـــاي کيـــږي
کـــړه مطـــرب تـــه ټـــول تارونـــه دربـــاب

دقلـم نـه تـوره بيـا تـوره بيـا جـوړه عـثمان کـړه
خاينـــانو تـــه جـــوړ شـــوي دي قصـــاب

# مضرات دروغگوئی

۱- دروغگوئی از بزرگترین گناهان است.
۲- دروغگوئی باعث بی آبروئی می گردد.
۳- دروغگوئی باعث شرمندگی می گردد.
٤- دروغگوئی باعث خورد شدن شخصیت فرد می گردد.
٥- دروغگوئی باعث بی اعتبار شدن فرد می گردد.
٦- دروغگوئی باعث از دست دادن دوستان می گردد.
۷- دروغگوئی باعث شرمندگی می گردد.
۸- دروغگوئی باعث ناراحتی افراد جامعه می گردد.
۹- دروغگوئی باعث ناراضی الله متعال می گردد.
۱۰- دروغگوئی باعث نفاق می گردد.
۱۱- دروغگوئی باعث ازیاد شدن دشمنان فرد می گردد.
۱۲-دروغگوئی باعث شکست خوردن در زندگی می گردد.
۱۳-دروغگـوئی باعـث از دسـت دادن خـانواده و اقـوام مـی گردد.
۱٤-دروغگوئی باعث از بین رفتن خیر و برکت در زندگی می گردد.

به خاطر تمام این مضرات و دها مضـرات دیگردروغگـوئی است
که اسلام از دروغگوئی ممانعت نموده و رسول الله صـلی الله علیـه وآلـه وسـلم دروغگـوئی را از صـفات منـافقین و از بزرگترین گناهان کبیره شمرده است.

# رباعي

دل مـــا بيـــدلان بردنـــد و رفتنـــد
مثـــال شـــعله افـــسردند و رفتنـــد

بيـــا يـــک لحظـــه بـــا عامـــان درآميـــز
کـــه خاصـــان بـــاده هـــا خوردنـــد و رفتنـــد

# حدیث

رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: إِنَّمَا النَّاسُ كَالْإِبِلِ الْمِائَةِ لَاتَكَادُ تَجِدُ فِيهَا رَاحِلَةً. متفق علیه.

ژباړه: خلګ (د حالاتو او صفاتو په اعتبار) د هغو سلو اوښانو په ډول دي چي په هغو کي يو دانه د سپرلۍ وړ وي (يعني خلګ خو ډېر دي مګر با استعداده عالمان او صالحان لږ پيدا کيږي).

# شهید

پیـــر رومـــی مرشـــد روشـــن ضـــمیر
کـــاروان عشـــق و مســـتی را امیـــر
منـــزلش برتـــر ز مـــاه و آفتـــاب
خیمـــه را از کهکشـــان ســـازد طنـــاب
نـــور قـــرآن در میـــان ســـینه اش
جـــام جـــم شرمنـــده از آئینـــه اش ؟

لیکنه
محمد شفیق صادق



# په افغانستان کې د تبشیر نوې پراخه څپه

تبشیري پالیسي د اسلامي نړۍ د مسیحي کولو او یا له اسلام څخه د بېلولو هغه پالیسي ده چې اروپایانو له (۱۵) مې پېړۍ راپدې خوا د نړۍ په گوټ گوټ کې کار پرې کوي، خو په (۱۹) او (۲۰) میلادي پېړۍ کې تبشیر د اسلام دښمنۍ یوه ښه وسیله شوه چې د لویدیځ د کلیسا واکمنو د نورو اسلام دښمنه کړیو په ملگرتیا د اسلام سره د مقابلې او له منځه وړلو په موخه، په مختلفو بڼو په روانه ساتلې وه، د دې پالیسۍ موخه دا وه چې مسلمانان په لومړۍ مرحله کې د اسلام ددین د حقانیت په برخه کې شکمن او متردد کړي بیا ترې داسې څوک جوړ کړي چې له اسلام سره یې تړاو وشلېږي

### د کار څرنگوالی

په تېرو پیړیو کې دا کار د عیسوي مبشرینو لپاره ډېر ستونزمن ؤ، دوی به لومړۍ ځانونه د مسلمانانو په بڼه جوړول، د هغو ژبه به یې زده کوله، د دین ډېر مسائل به یې زده کول، او تر ټولو دا چې په پښو به کلي په کلي، ښار په ښار، او مدرسه په مدرسه گرځېدل، له همدې امله دوی ن به له ستونزو سره مخ وو، خو په مستعمرو سیمو ن کې یې بیا کار ښه پرمختگ کاوه.

د همدې تبشیر په مټو، د افریقا لویه وچه، هندوستان، جنوبي آسیا، تر دې چې تر فلیپین او کوریا پورې عیسویت خپور شو، او په اسلامي هېوادونو کې یې ارتداد گڼې لاسته راوړنې درلودې.

په افغانستان کې د مبشرینو فعالیتونه دانگریزي استعمار د راتگ سره سم پیل شول، داچې متأسفانه افغانستان په تېرو دوو پېړیو کې د کورنیو اغتشاشونو او د انگریزي استعمار سره لاس او گرېوان ؤ حکومتونه او لیکوالان ندي توانیدلي په دې اړوند کره لیکنې ولري، خو موږ ته ډېر داسې حکایتونه را روایت شوي چې ځینو انگریزانو ( مبشرینو ) به د ملایانو، پیرانو او مجاورانو په جامو کې په ځینو سیمو کې د خلکو تر منځ کار او ژوند کاوه...

### نوی تبشیر

خو د علمي پرمختگونو او د وسائلو د آسانتیاوو په برکت د تبشیر کار آسانه شو، او مبشرین پرته له دې چې د پخوا په شان د ملایانو او پیرانو په جامو کې په کلیو او مدرسو وگرځي د مؤسساتو، پروژو، سیمینارونو او ورکشاپونو له لاري . په تېره بیا د فیسبوک، ټویټر، انټرنټ او رسنیو په واسطه یې فعالیت پیل کړی دی.

دوی په لومړي سر کې هغو کسانو ته د اسلام په هکله شکونه پیدا کوي چې د اسلام څخه کافي معلومات نه لري، هغوی ته له یوې مرحلې وروسته په همدې برخه کې روزنه ورکوي، تر څو دوی په خپله د افغانانو تر منځ دا کار په غاړه واخلي ..چې همدا اوس په مختلفو بڼو دا فعالیتونه د ځینو مؤسساتو او ټولنو له لوري په مخ روان دي..

### په افغانستان کې د تبشیریانو دجگړې ډگرونه

د تېرو او روانو بې ثباتیو او جگړو څخه په گټه اخیستنه په افغانستان کې د کلیسا تبشیري لویې ډلې د خپلو لویدیځوالو فوځونو او پراخو مؤسسو په مټو توانیدلي چې گڼ کسان د خپلو موخو ښکار کړي، چې ځینې خو یې په تېرو کلونو کې د مسیحیت تر اعلان پورې هم ورسېدل، چې اوس بیا همدا افغاني مینځل شوي مفکرین د پیسو په مقابل کې د انجمنونو، مدني ټولنو، او نورو خیریه مؤسسو په نوم همغه کار کوي چې تبشیري مؤسسې او ډلې ورته لارښوونه کوي.

په افغانستان کې مبشرین په لاندې ډگرونو کې زموږ په خلاف خپله جگړه په مخ بیایي:

#### ۱ -د حجاب په خلاف جگړه

دوی دا جگړه له چادري راپیل کړې، او د افغاني ښځې تر پوره بې بربنډولو به

يې پرمخ بيايي چې تېرو دوو مياشتو کې د چادرې په سر کولو، او د نقابونو په مسخره کولو کوڅو او بازارونو ته راووتل .تر څو د حجاب اهميت راکم او افغاني ښځې له خپل کلتور څخه را وباسي..

**۲ -په ديني مدرسو او ديني مرکزونو بريدونه**

ددې لپاره چې ديني مراکز، مدرسې او دار الحفاظونه له منځه ويسي، او يا يې په ټولنه کې رول راکم کړي، نو دا مرکزونه د ترورزم په نوم، د بد اخلاقۍ په نوم او داسې نورو نومونو تورن کوي، تر څو يې اهميت راکم، په خلکو کې منفور او بيا يې له منځه يوسي.

**۳ -د ديني علماؤ بدنامول**

د دين علماء د ديني پوهې له امله په ټولنه کې د دين د رسولو، بيانولو او خلک پرې پوهولو اساسي مراجع دي، دوی ديني علوم لوستي او دنده لري تر څو همدا ديني علوم خلکو ته ورسوي، او خلک ددين په احکامو اوامرو او نواهيو پوه کړي، خو ددې لپاره چې د عام اولس له دين سره فاصله پيدا شي، له دين څخه ناخبره واوسي، دوی هڅه کوي ديني او مذهبي مشران د خلکو په وړاندې بدنام، او ناوړه معرفي کړي، خبرې يې دروغ او وينا يې بې ګټې وښيې.

ديني او مذهبي مشران او علماء د ترورزم په ملاتړ بدنام کړي، داسې يې خلکو ته معرفي کوي چې همدا علماء د ترورزم په ترويج کې لاس لري.

**۴ -ديني مقدسات او مذهبي ورځې بې اهميته ښول**

ددوی جګړه په پاسنيو ډګرونو کې نه تم کېږي، دوی په ديني مراسمو، لکه: حج کول، روژه نيول، زکات ورکول، د اخترونو قربانيو هم نيوکې کوي، او خلکو ته داسې فکر ورکوي چې ګواکې دا ملايانو د خپلو ګټو په موخه رامنځ ته کړي او کومه ګټه نه لري، له همدې امله هڅه کوی خلک د حج او عمرې له اداء کولو را وګرځوي، د روژې نيول ورته بې اهميته کړي، د اختر ذبحه ورته ظلم معرفي کوي.

**۵ -له اسلامي امت او اسلامي تاريخ څخه بېلول**

تبشيري ډلې د خپلو سيکولر ډلو په ملاتړ غواړي افغانان له نور اسلامي امت څخه را بېل کړي تر څو کمزوري او د اسلام سره يې تړاو وشلېږي، بيا يې په خپلو منځونو کې يې به قومي او ژبنيو اختلافاتو کې راګير کړي د اسلام سره تړاو ورته يو بهرنی تړاو معرفي کوي، هڅه کوي چې دوی ته دا وښيي چې اسلام خو عربو راوړی او دا يو پردی او د عربو دين او کلتور دی، اسلامي تاريخ ورته بهرنی کلتور معرفي کوي له همدې امله کله ورته د آريايانو جشنونه جوړوي، او کله هم د زردشتيانو..

**٦ -د اسلام په ځينو لارښوونو ملنډې وهل**

ددې لپاره چې اسلام د خلکو په اذهانو کې بد او کمزوری معرفي کړي، د اسلام په ځينو احکامو او قوانينو نيوکې کوي او ملنډې پرې وهي، له دې جملې څخه د جهاد په هکله ناوړه تبليغات کوي، او جهاد يو ناروا، د وينو تويولو، او ورانۍ عمل معرفي کوي تر څو په دې ډول د جهاد موضوع د خلکو په وړاندې بې اهميته، او استعمارګران وکولای شي په آسانۍ په افغانانو خپل واک ټينګ او د تل لپاره مستعمره کړي، همدا شان د قصاص، او حدودو په اړوند هم خلکو ته شکونه پيدا کوي.

**۷ -د متشابهاتو او عقيدوي مسايلو راوړاندې کول**

په قرآنکريم کې ځينې آيتونه صريح بيان لري او په آسانۍ يې مطلب اخيستل کېدای شي خو ځينې بيا داسې آيتونه شته چې د معنی په هکله يې مفسرين يوه خوله ندي، چې دې ته متشابهات وايي، دوی دا آيتونه د عامو مسلمانانو په وړاندې چې اصلا له اسلام څخه کامل معلومات نه لري د بحث لپاره وړاندې کوي بيا پکې خپل د خوښې تعبيرونه او تفسيرونه کوي چې کله هم د اسلام احکام خلکو ته غلط معرفي کوي، همدا شان ځينې عقيدوي مسائل چې په پنځو حواسو نه لمس کېږي، د شک اچولو په موخه د بحث لپاره راوړاندې کوي لکه د جنت او دوزخ، د قبر عذاب .. ملائکې او داسې نور بيا پکې خپل تأويلات کوي..

دا او داسې نور فعاليتونه همدا اوس د تبشيري ډلو له لوري روان دي، کېدای شي، افغانان ددې خلکو اصلي څېرو او موخو ته متوجه او ددوی په اصلي موخو پوه شي.

(ح-رشيدی)

# مولوي محمد نبي محمدي رَحِمَهُ اللّٰه

# په یاد کې

اروابناد مولوي محمد نبی محمدي دا سلامي نړی په کچه نومیالی دیني او سیاسي شخصیت وه ، په (۱۳۰۰) لمریزی کال چې له (۱۹۹۲) زیږدیز کال سره سمون خوری د لوگر ولایت په برکی برک ولسوالی اړوند د شیخي خیلو په عباس کلا کې دنیا ته سترگې غړولې، او د اپریل میاشتې ۲۲ نیته د مرحوم مولوي صاحب د وفات نیټه ده نوموړي د ۲۰۰۲ میلادي کال د اپریل په ۲۲ نیټه خپل روح ملک الموت ته وسپاره او له دې فاني نړۍ څخه یي دتل لپاره سترگې پټي کړي او په لوگر عباس کلا څمکه کې خاورو ته وسپارل شو .

د نوموړي د ژوند بیلابیل اړخونه دي ، چې په ټولو لیکنه په کلونو وخت غواړي خو متاسفانه چې دامت په دغه نابغه اولوی علمـي هستی په څېړلو اوکماحقه معرفي کولوبانـدي یوه میاشت څه چې یوه اونی هم چاڅان ستومانه نکړ، لکه چې اروابنـاد ابوالحسن نـدوی صاحب ویـلي، دافغانستان زیات مشاهیر اودنبوغ څښتنان چي کله وفات شوي ، نو کارنامي او شاه کاری یې هم په خاورو کې ورسره دفن شوي اوراتلونکی نسل ترې معلومات نلري .

محمدی صاحب زموږ د هیواد یوه ستره علمي پانگه وه ، د هیواد په علمي او سیاسي ډگر کې یې ډیر د پام وړ خدمتونه کړي ، هغه یو مذهبي لاربنود او جهادي قائیدوه،په حجره او مدرسه کې ممتازمدرس او په سیاسي میدان کې بیا ستر مبارز او مجاهد وه ، زه دده ژور بحر په علمي او سیاسي متن له بې وسی څه لنډ غوندي لمن لیک کاږم ، خدای دی وکړی چې روح یې په قبر کې راڅخه خوشاله شی او دخپلو اسلافو په یادولو وارزم

## علمي اړخ :

د محمدي صاحب ، علمي اړخ زیات قوي او د غبطې وړ وه ، دوخت د نومیالیو عالمانو ، ملالونگ ، مولوی عبدالحنان تگابي ، قاضی احمد پادخوابي او شیخ الحدیث مولوی داد محمد صاحب ، په شاگردانو کې وه چې له فراغت وروسته یې په لوگر، سرپل ، میمنی ، او هلمند ولایتونو کې شاندارتدریس ترسره کړ.

تردې چې په ټول هیواد کې د ده دغوره اوځلانده فصاحت او بلاغت انگازې خپرې شوي او په علمی میدان کې لکه ځوارلسم سپوږمی په ځیر وځلیده ، د هیواد له هری سیمي څخه د طالبانو بهیر ورته رامات شو ، په ورستیو وختونو کې به یوازې منتهی طالبان ورباندې دیره کیدل چې په زیاتو درسونو کې یې سرې او تودي تیري کړي او له استاذانو سره به یې پوره بحثونو هم کړی وو ، خو له ده سره به په اونی کې یو سبق ته هم پراته وو ، وایی چې کله نوموړی په ولسي خدمتونو بوخت شو او ډیر لږ وخت د سبق ویلو فرصت په لاس ورتله ، نو بیا یې په اونې کې یو سبق طالبانو ته وایه چې تر بله اونی به طالبان خوښ او خوشاله وو ، نومیالی عالم او استاذ کل حاجی صاحب محمد صادق یې په خاصو شاگردانو کې وو هغه به ویل : محمدي صاحب به یوویشت کتابونه طالبانو ته ویل بلاخره سر به یې در د کاوه ماته یی قاروره راکړه چې دا په غیر کې حکیم ته ووړه او

هغه حکیم صاحب ، هـم خـورا زیـات مشـور او ښـه مـاهر وه زه حکیم صاحب ته ورغلم او دکوټي په تاخچه کې مې هغه قـاروره کیښوده حکـیم صـاحب چې راننـوت کیناسـت ، پـه قـاروره یـې سترګې ولګیدې ، ناڅابه یې وویل هغه قاروره د چـا ده ؟ دا سـړی ډیر زیات ذهین او غالبا (۳۱) کلن دی ما کیسـه ورتـه وکـړه چې داسی سر یې خوګیږي ، هغه یو څه دوا راکـړه او راتـه یـې وویـل چې ټول عمر به د پوزی نسوار منغوزي کوي ، همدایې عـلاج ده کنه سر به یـې خـوګیږي هماغـه وه چې نومـوړي ټـول منغـوزی کول.

مولوی عبدالحی صاحب، بغلانی چې د افغـان شـوروی پـه موده کې د محمدي صاحب د ګونـد لخـوا ولایتـی آمـر او تکـړه جهادی قومندان وه او د محمدي صاحب ، په شـاګردانو کـې هـم راته وایې مونږ د جهاد په موده کې څو علماء سره رایو ځای شـوو او په عربی ژبه مو یو لیک په ډیـره خـواری نومـوړی تـه تیـار کـړ چې ورمو کړ زریې له سترګو تیر او د سـترګو پـه رپ کـې یـې پـه عربي داسی ځواب پرې ولیکه چې مـونږ یـې هـک حیـران کـړو اوایله مو د هغه ژور علمي استعداد زړونو ته ښکته شـو پـه ربښـتیا چې ډیر لوی او بې ساری عالم وه.

## سیاسي اړخ :

د اروابناد محمدي صاحب سیاسي اړخ هم خـورا ژور او د سـتاینی وړ وه، لـه کمونسـتی انقـلاب مخکـې او ورسـته یـې پـه سیاسی چوکاټ کې د اسلام د سپیڅلي دیـن او مسـلمانانو زیـات خدمتونه کړي و ، د خپـل علمـي او سیاسي بصیرت پـه برکـت د حضـرت ضیاءالمشـایخ شـهید اسـلام (رح)، شیخ الحـدیث میـر صـاحب عبدالستار د مغلوخیلـو (رح) او شـیخ الحـدیث مولـوی محمد دیـن خـرخ مولـوی صـاحب (رح) او نـور مخـورو لخـوا د دیارلسمي دوري د شاهي نظام د (۱۳۴۷)لمریز کال ولسی جرګې انتخاباتو ته کاندید کړای شو، چې د خلکو په پوره مرسته په قـاطع اکثریت ولسي جرګه ته د مسلمانانو د استازی په توګه بریـالی شـو او له همدې وخت څخـه یـې عمـلي سیاسي ژونـد پیـل شـو، پـه همدې موده کـې بـه یـې د بې وزلـو افغانـانو، د دینـی عالمـانو او طالبانو عملا لاس نیوی کاوه، له ظالم څخه به یـې د مظلـوم حق اخیست او د دین ، وطن او اسلامي شـعایرو پـه دفـاع کـې بـه هـر وخت له ملحـدینو سره لاس او ګریـوان وه ، پـه شـاهي نظـام کـې شوروی پلوه کمونستان خورا په زور او شور کـې وو ، د اسـلام لـه سپیڅلي دین او شعایرو سره یې بې باکه او ناولې جګړه پیل کـړې وه او په مقابل کې یې هر مسلمان خوځښت ټکول کیده.

د ولسي جرګې همدې دورې ته لکه څرنګه چې کمونسـتان زیات داخل شوی وو همدارنګـه د هیـواد لـه مختلفـو ولایتـونو څخه په کافي ونډه دینی عالمان هـم بریـالی شـوی وو، محمـدی صاحب په (۱۳۵۱)لمریز (۱۹۷۲)زیږدیږ کال د ولسي- جرګې پـه تالار کې ټول ولس او حکومت ته په زړه پوری وینا وکړه دا وینـا چې دوه نیم ساعته اوږده وه ، د مسـلمانانو پـه زیـاتو تـودو ولولـو بدرګه شوه، له ډیری خوشالی به د محصلینو لـه سـترګو اوښـکې روانې وې ، د شوروی اتحاد جاسوسانو او لاسپوڅی او همدارنګه حکومتی چارواکي ګوته په غاښ ورتـه ناسـت وو، د نومـوړي د خبرو وخت که څه هم لږ وه خو وکیلانو به یو پـه بـل پسـی خپـل وخت ده ته باښه ، د نوموړی ثبت شوی وینا په بازار دهغه وخت په پنځـوس افغـانیو خرڅیـده چې دا ډیـر زیـات لـوړ قیمـت وه ، نومـوړی دوینـا پیـل د حمـد او ثنـا وروسته پـه داسـی تـورو پیـل کړو: ای مسلمان هیواده ای مسلمان ملته ، ای د افغانستان د اسلام د عویدار حکومته، دښمن دې کورته راغی ته د مـرګ پـه خـوب ویده یې ، پردیو دې هیواد چور کړ او ته لا ورتـه ګـوری، هغـوي دې شارګونه پریکړل او تـه یـې لا غـږ هـم نـه اوری !! لـږ سـوچ وکړه ، د محمود غزنوي وارث او د احمدشاه ابدالې خلیفـه یـې ، نو ولې ویده یې او ولې ډاریږی ؟

هماغه وه چې په کمونستانو اور بل شو او د شـوروی اتحـاد سرې لښکرې یې د یرغل لپـاره راوغوښـتي ، محمـدي صـاحب د شوروی سرو لښکرو او کمونستانو په وړاندې د هغـو د یرغـل پـه مقابل په کمال ایمان داری اومتانت پـه جهـاد پیـل وکـړاو د یـوه افغان شموله جهادي ګوند (حرکـت انقـلاب اسـلامی افغانسـتان ) مشری یې په غاړه وه ، د هغه د لوړ سیاسی اسـتعداد لـه برکتـه دده مخالفین هم کم او په نشت حساب وه هغه به له خپلـو مجاهـدینو او قومنـدانانو څخـه غوښـتل چې د بـل مجاهـد او مسـلمان پـه

وړاندې له ظلم ، زیاتي ، او جګړې څخه په کلکه ډډه وکړي که به یې په قومندانانو جګړه وروتپل شوه ، هغه بـه دنـه جګړی توصیه ورته کوله او کله خو به یې له ورته ویل چې وسله ورکړی ځادر پـه اوږه کـړی او خپلـه کورتـه لاړ شـی ستاسـو همـدومره مسولیت وو نـور مـو خـدای پـاک نـه نیسي۔، د هغـه مدبرانـه او مخلصانه سیاسي پالسی برکت وه چې ترپایه یې ګوند له خپل منځی جګړو وساته ، نوموړي د دروغو او چل ول سیاست نـه کاوه اوله داسې سیاست څخه یې زیاته کرکه کوله ، هغه بـه ویـل چې تاسو به وګوری که خدای (ج) افغانستان ازادکړ نـور مشران بـه ارګ تـه ځـی او زه بـه جومات تـه ځـم ، هماغسي۔ وشـول ، محمـدي صـاحب تریـوې مـودې پـوري دمجاهـدینو درقیبوګوندونو ترمنځ دسولې اوروغي په نیت هلې ځلې وکړي ، خوکـوم ځـای یـې ونـه نیـوه ، بـالاخره چې کلـه دطالبـانو اسـلامي حرکـت پــه افغانسـتان وزري وغـوړولي ، نـو حقپـال محمـدي صـاحب یـې لـه پـوره مطالعي او دقت ورسته په بشپړ ډول حمایت وکړ ، تردې چې کلـه امریکـایي یرغـــل پیـــل وکـــړو ، محمــــدي صـــاحب دیـــوه بابصیرته اوحقاني عالم اولاربشود پـه څیر پـه خپـل غږ کې دجهاد فتوا ورکړه ، چې پـه څـه مـوده وړانـدي هغـه پـه ټـول افغانستان کې تکثیر هم شوله ،

همدارنګه کله چې دروسانو دیرغل پـه وخت پـه جینـوا کې د افغانستان په موضوع خبری اتری پیل شـوی خبره ډیره اوږده او کړکیچنه شوه، شوروی غوښتل چې ځان تـه یـو د ځتـو پوزه جوړه کړی او امریکا غوښتل چې مجاهـدینو دیـوه سـوچه اسلامی نظام په ځای یو ګـډوډ نظام رامنځتـه شـی د مجاهـدینو مشرانو به هم بیلابیل سیاستونه او نظرونه ښکاره کول ، خو د هغـه سیاسـت داوه او ویـل بـه یـې ، زمـوږ مشـکل لـه کمونسـتانو او شورویانو سره ده له دوی پرته هر افغان مسلمان راته د منلو وړ ده خو چې د افغانستان مشکل وربانډې حل شي، داووه د نومـوړي د علمي اوسیاسي اړخونه څخه د یو څو نقطو یادونـه وه ، د هغـه روح دي خوشاله او یاددي تل وي.

## پرسټامول ګولۍ ډېرې مه خورئ، د مرګ خطر لري!

پرسټامول ګولۍ د درد ارامۍ لپاره نیمچه ډاکټران د هـرې نسخې په سر کې لیکلي، اما نن باید پوه شئ چې کـه سمدستي مــو درد ارامــه کــړي، نــو د مــرګ خطــر هــم لــري. یو شمېر کورنۍ خو بیا د همدغو نیمچه ډاکټرانو له لاسه نسخه هم نه اخلي او کله چې یې د کورنۍ کوم غړی ناروغـه شي، نـو سمدسـتي ورتـه لـه درملتـون څخـه پرسټامول ګـولۍ راوړي. په بریتانیا کې په یو شمېر ناروغـانو، چې پرسټامول ګولۍ یې زیاتې خوړلې وې څېړنه وشوه، په نتیجه کې یې معلومـه شوه، چې د پرسټامول ګولیو زیـات خـوراک د انسان ینـه خرابـوي او جګري رنګ یې توروي، چې لـه املـه یې انسان لـه ډول، ډول نورو ناروغیو سره هم مخ کېدلای شي او د مرګ خطـر یې اوج ته رسېږي.

په پرسټامول ګولیـو دغـه څېړنې پـه دیارلسـو څېړنـو کې جایزه اخستې او اکثریت کسانو دوی ته ویـلي، چې کلـه بـه لـه عادي دردونو سره هم مخ شول، نـو دوی بـه پرسټامول ګـولۍ خوړلې او ان ځینو خو دا هم ویلي، چې د بدن د نورو دردونـو ارامۍ یې حس کړې، اما وروسته یـې د زړه بـدوالی، شـدید درد او ځینې نـور دردونـه هـم احسـاس کـړي دي، چې دا پخپلـه د پرسټامول ګولیو له وجې د زړه د خرابولي علایم ښودل کېږي. همـدا ډول څېړونکـې ډلـې لـه پـنځلس زره ناروغـانو څخـه پوښتلي، چې د ملا درد لپـاره ورتـه ډاکټرانـو پرسټامول ورکـړي وي، خـو وروسـته یـې پـه زړه کـې نقصـان راڅرګنـد شـو. ډاکټران وایي، د بدن یو شمېر دردونه د ګولیو او درملو پر ځـای په ورزش ډېر زر ښه کېدلای شي، امـا بیـا هـم اکثریـت کسـان هڅه کوي ګولۍ وخوري

ددې مضمون تر لوستو وروسـته بـه درتـه معلومـه شـوې وي، چې پخپل سر خو څه چې ان د بې تجربې ډاکـټر د نسخې په اسـاس هـم د یـو شـمېر درملـو خـوړل څـومره زیـان اړوي . که غذایي مهالوېش مو سم ترتیب کړئ شاید کله هم ډاکـټر تـه د ورتلو اړتیا پیدا نشي، اما که اړتیا وه، نو مجبـوره یاسـت، خـو پخپل سر خو کله هم درمل مه خورئ!



مولوي محمداعظم صديقي

# زه ولې دفقهې تخصص کوم ؟

بسم الله الرحمن الرحيم

زه ډېره خوښ يم چې لوی خدای جل جلاله مي يوبله سپيڅلي هيله پوره کړه ،له ډېره وخته مي تلوسه وه چې زه به داصحاب صفه په څېر بياځرنګه ددي جوګه شم چې لوی خدای جل جلاله يې په اړه فرمايي [ لولانفرمن کل فرقة منهم طائفة ليتفقهوا في الدين ولينذروا قومهم اذارجعواالیهم ] ... ولي نه وزي له تاسو نه يوه ډله چې په دين کې پوه حاصله کړي ، اوبياچې ددين احکام زده کړي نوولاړشي خپل قوم ته اوهغوئ دالله تعالی له عذابونو څخه وويروي .

ښه ډېره زمانه دافکر راسره و چې دفقهې تخصص به کوم ،خومتاسفانه چې زماکورنيوستونزو اوضعيف اقتصاد ددي په ځای چې ماته دتخصص اجازه راکړي ؛داتقاضاکوله چې زه بايد دټول عمر لپاره کتابونه کت کړم ،اوبيا دتعليم اوتعلم خبره په خوله هم رانه وړم .

خوالله جل جلاله چې دچاپه تقدير کې څه ليکلي وي ؛په هغه کې هيڅ تغيراوتبديل نشي کيدلای ،ډېره موده وروسته لوی خدای جل جلاله زما هغه درانه مشکلات راڅخه کم کړو ،اوبوخت بيا يې دتعليم زمينه راته مساعده کړه ،دوه کاله وړاندي چې يوي نړدي دارالافتاء ته ولاړم اوپه تخصص في الفقه کې مي دداخلي فورمه ثبت کړه ،نودلېږ وخت په تيريدو مي يوه نوي نړۍ وليده ، اوداراته څرګنده شوه : چې هغه مسير چې زموږ دځوانوعلماؤ څخه له کلونوکلونو لادرکه ؤ اولوی خدای جل جلاله يې په قرآن کريم کې په صافوتورو وايې چې :

[ومن يوت الحكمة فقداوتی خيرا کثيرا ] چاته چې فقه يعني ددين فهم ورکړ شو نوهغه خيرکثير وموندل ،

اوهغه ورکه هيله چې دالله جل جلاله رسول يې په اړه راته په څرګند ډول وايې : من يردالله به خيرا يفقه في الدين ، چاته چې الله تعالی دبې شميره خيراراده وکړي نو فقاهت به ورنصيب کړي.

هغه ورک مسير اوورکه هيله همدلته وه ،هغه هرڅه دلته دي ،زموږ سترګي وغړيدي، زموږ استعدادونه ويښ شول ، ماته داصحاب صفه دنصاب ډيرڅه دلته څرګندشول ، ماته دالله ج دوروستي پيغمبرصلی الله عليه وسلم تګلاره اودهغه لاربښووني دلته جوتي شوي ،زه اوس ډير هوساه شوم ، اوکه دژوند په لاره کې هرځومره ستونزي راشي زه به يې داسې په سړه سينه وزغمم چې دنورو به هم مشال شم ، ماته ترډيره دژوند دبېلا بيلو لارو ټول اړخونه سم اوناسم څرګندشول ،اودادلوی خدای يوه ستره لورينه ګڼم ،

زه داهم ګڼم چې دجهاد په څېر چې يوبنده دځان لپاره دآخرت لپاره خواري کاږي اوغواړي چې ويښه اوويده يې هرڅه دحسناتو ترازو ډک کړي ،همداسې ديوه ربښتوني متخصص په توګه به زموږ اعمال هم دآخرت لپاره يوه ښه ذخيره وي ،

حضرت ابوهريرة رض فرمايي : [ لان اجلس ساعة فافقه احب الی من ان احی ليلة القدر ] داچې يوه شيبه دفقه دزده کړي په مجلس کې يم دا راته درډي غوره ده چې دليلة القدر شپه په عبادت کې تيره کړم ،يعني لکه يوتن چې دليلة القدر دشپې په

عبادت باندي څومره اجر اوثواب ترلاسه کولای شې زه په دغه یوه ګړی ناسته باندي ترهغه ډېر اجر هیله لرم .

دطبراني په یوه روایت کې راغلي دي : [مجلس فقه خیر من عبادة ستین سنة ] هغه یوه ناسته چې ددین مسائل په کې زده کیږي دشپیتوکالو ترعبادت غوره ده ، یعني کیدی شي چې یوتن دفقه په دغه یوه مجلس کې داسې څه لاس ته راوړي چې دشپیتو کالو په عبادت یې لاس ته نشي راوړلای ، دبیلګي په ډول که یوتن دفقهي په یوه مجلس کې دریآء په اړه معلومات ترلاسه کړي اوبیا له ریاء څخه ډډه وکړي دهغه سړي چې شپیته کاله عبادت کوي اودغه مسئله نه وي ورمعلومه ډېرغوره ده .

دلته داډول نور ډېر اثار اوحدیثونه شته خوزه یې په دي وړاندي شوي باندي اکتفاء کوم ، اوغواړم چې دشاعري له میدان څخه دفقه په اړه دیوه شاعر تاثرات هم راواخلم :

اذا مااعتز ذوعلم بعلم ..... فعلم الفقه اولی باعتزاز

وکم طیب یفوح ولاکمسک.....وکم طیر یطیر ولاکباز

ژباړه : که څوک غواړي چې په یوه علم سره[ په دنیا اوآخرة کې ] ځان سرلوړ ی او معزز کړي ،نودفقه په علم ډیر اعتزاز حاصلولی شي ،څومره ډېرې خوشبویې دي چې ښه معطر بوی لري ، مګر مشک بیل قدر لري ،ډیرمرغان الوزي مګر دبازالوتنه بیابیله ده .

تفقه فإن الفقه أفضل قائد .... إلى البر والتقوى وأعدل قاصد

وکن مستفیدا کل یوم زیادة .... من الفقه واسبح في بحور الفوائد

فإن فقیها واحدا متورعا .... أشد على الشیطان من ألف عابد

ژباړه : فقه زده کړه ؛ځکه فقه دتقوی اونیکیو لوري ته ښه قائد اوعادل قاصد ده ، هره ورځ زیار وباسه چې دفقه څخه څه لاس ته راوړي اوځان تري مستفیدکړه ،اودفقه دفوائد په بحر کې تل لامبو وهه ؛ ځکه یو پرهیزګاره فقیه په شیطان باندي ترزروعابدانو غښتلی دی .

## زموږ تخصص او دارالافتاء

اوس به په ساده ژبه درته ووایم ،چې په دارالافتاء اوتخصص کې هغه کوم څه دي چې مادغه لیکلو ته هڅوي ؟ په دارالافتاء کې دخپل یوه بهترین نصاب سره چې دلوست ، مطالعي،لیکني ،اوهراړخیزو لوړو دیني زده کړو ترڅنګ په کې ددیني احکامو اومسائلو ورځنی تمرین ترسره کیږي ،ددین دپوهي یوه داسي سلسله روانه ده چې زموږ دځوارلس کلني دیني تعلیم ټول اهداف په کې څرګند اومشاهداتي ډول لاس ته راوړل کیږی .

دتخصص في الفقه په مټ موږ دقرآن کریم اونبوي حدیثونو داحکامو برخي سره داسې اشناشوو چې ښآیې څوارلس کاله مونږ په درس کې تیرکړي وای نو دغه ذائقه به مو نه وای څکلي .

موږ په تخصص کې دهغو فرعي مسائلو چې زموږ دمذهب سترامام ابوحنیفه رح به دخپلو ممتازو شاګردانوسره ورباندي څیړني کولي او موږ یې یواځې عناوین په متونو یافتاواو کې لیدل ، دهغوئ اهمیت ،حقیقت ،اوکیفیت همدلته محسوس کړ .

هغه فقهي اختلافات چې دفقهي څیړني په مجالسویاهم داجتهاد په دوران کې به دمجتهدینو په افکارو کې راڅرګندیدل اوبیا په هغوئ کې دمتاخرینو په وړاندي راجح اوانتخاب ته رسیدل هم دتخصص ځانګړتیا ده . کنه وي دي ژورو ته رسیدل په اوسني عصرکې یوناشونی کار دی .

هلته یوه بله دپام وړخبره داوه چې په یوه ځانګړي طرز دمیراثو اجراء ، دفلکیاتو اوجغرافیې تمرین ،داقتصاد اومعیشت تعارف ،دژبو زده کړه ،ګرامر اولیکدودونه ، اونورپه زړه پوري سلسلي په مخ وړل کیدي چې په نني عصرکې یې دفقهي اوفقاهت دودي اوارتقاء تضمین کاوه .

په تخصص کې دهغوعلماؤلپاره چې په یوه هدف پسې یې څوارلس کاله تیرکړي وي اوبیاهمدغه اهدافو ته له رسیدو وړاندي له دي ټولو ارزګانو څخه دیوه لار وروکي په ډول ستون شوی اوس یوه ډیره ښه موقع وه چي دیوه کال په ترڅ کې هغه

ټولي علمي پانګي لاس ته راوړي چې ده یې له کلونوکلونـو هیله لرله.

په دغه فقیره دارالافتاء کې چې په ډیرو ستونزوکې یې داقتصاد په ډیره ټیټه درجه کې درناد غه مشال بل کړ اوس یــې دهیــواد اوبهــر څخــه دهغــو بې شــمیره خلقوستونزي هواري کړي چې دخپلي یـوي مسئلي دحل په تلاش پسي به لالهانده ګرزیدل .

مورږ لیدل چې په ښکاره دغه کوچنی خو له معنی ډیره ستري اداري تـه هـره ورځ پـه لسګونو استفتاوي دبریښنالیک ، تلفـون ،خطونـو اوخپلـه دخلګوپـه توسط چې اداري ته راتلو ، رارسیدلي .

اوهغـــه ځوابونـــه چـــې ددارالافتـــاء مفتیـــانو یامتخصصینوبه لیکل ډیر دپام وړ په دي وو ؛چې دقرآن کریم دآیتونو ، دصحیح احادیثو اودفقه دمعتبرو متونـو ،شروحو ، اوفتاواو څخه به په مستند ډول دحوالـو سره لیکل کیدل .

په پای کې یوه دتاسف خبره چې کله مي څوروي داده : چې ددارالافتاوو اوتخصصاتو ددغه حسین امتزاج سره نااشنادځینو ملااماماـنو هغه بي روحه اعتراضات دي چې دسلطان مبین پرته په ځینو مجلسو کې خوله پري ښوروي .

البتـه : داسـمه ده چـې دځینـو نیمګـړو دارالافتـاوو څخه به داسې نیمګړي علماء متخرج شوي وي چې په ځینو مـواردو کې یې سختي کـړي وي ، یـایې کومـه بلـه غلطي کړي وي ؛ مګر دداسې یوي سلسلي مخالفت یاپـه دینـي علومـو کې ددي دلـوړوزده کـړو ددغـي سلسـلي مخالفت له ناخبرتیا پرته بل څه نه وي چې په حقیقت کې خپله دمعترض ،تعصب ،غلو اوعیبونه ښکاره کوي .

په پای کې لاس په دعایو چې لوی خدای دغه دعلم اومعرفت اداري نوري وسیعي کړي.

## دټولې نړۍ درې برخې وسلې په چین کې تولیدېږي

د راپورونو لـه مخې چین پـدې وروستیو کـې هڅه پیل کړې، چې د تېرو څلورو کلونو په پرتله سږ د وسلو په تولید کـې زیـاتوالی راولي او پـدې سره نومـوړی هېـواد دا مهـال دټولې نړۍ درې برخې وسلې او نظامي تجهیزات تولیدوي.

په چین کـې د وسلو جوړولـو مـاهرین وایـي، د نـړۍ پـه سطحه د دویم درجـه اقتصـاد لرونکـی هېواد دا مهال پدې هڅه کې دی، چې د تېرو څه باندې څلورو کلونو په پرتلـه سږ زیاتې وسلې تولید کـړي او پـدې سره بـه د وسـلو تولیـدونکو هېوادونو دریم مقام خپل کړي.

تر دې وړاندې جرمني دغه مقام درلود او د سټاکهلم د سولې نړیوال انسټېټوټ پـه وروستي خپاره شوي راپـور کـې ویل شوي دي، چې چین دا مهال د دغه مقام نیولو په جدي هڅو کې دی. د تېرو څلورو کلونو د همدې مودې په پرتله د چین د وسلو په تولید کـې ۱۴۳ سلنه زیاتوالی راغلی دی.

تر دې وړاندې هم چین د نړۍ د لسو هغو هېوادونـو د لست په سر کې ځای درلود، چې وسلې یې تولیدولې، خـو د ترسره شویو څېړنـو پـه اساس د ۱۴۳ سلنه تولیداتو زیـاتوالی دریم مقام ته راوست.

پــه نــړۍ کــې د وســلو د تولیــد د زیــاتوالي پــه اړه ساینسپوهان وایي، د منځنـي ختیځ، عربي هېوادونـو او یـو شـمېر نـورو هېوادونـو جګـړې ددې لامـل شـوې، چـې تولیدونکې کمپنۍ هم خپل تولیدات زیات کړي.

(شیخ الحدیث اسحقزی)

# په اســـلام کې

# د سلام حکمت او اهمیت

ان الحمدالله نحمده ونستعینه، ونسعدیه، ونستغفروه ونعـوذ بـالله مـن شرور انفسـنا ومـن سـیأت اعمالنا، من یهده الله فلا مضلـه لـه، ومن یضلل فلا هادی له واشهد ان لا اله الاالله وحده لاشریک له واشهدان محمداً عبده ورسوله صلی الله علیـه وسلم تسلیما کثیراً کثیرا.

وبعد: محترمو لوسـتونکو تـه دي معلومـه وي چـې څـوک کلـه دمکلفیت او مجبوریت او کله بیـا د ایمانې او اسلامې وجیبې په لحـاظ او کله هم دخپـل شـوق او ذوق پـه لحاظ ولوستونکو ته لیکنه وړانـدې کـوي، چـې هغـه پـه اوسـنې او راتلونکې کې دخلگـو دگټـې لپـاره ثابته شي، حقیقـت دا دي چـې کـه چیرې سړي دیو څه پـه حکمـت او حقیقت پوه نه شـې ، نـو بیـا خـو دهغه څه په قدر او منزلـت هـم نـه پوهیږې، نو پکار ده چې هر سـړي دخپل ذهن او دوجود او دماغ د توان په اندازه زده کړه وکړي، او دا په انسـانې ټولنـه کې یو اهم ضرورت دي. نو ما هم داللهﷻ بنده ددې رسالې دلیکلو هڅه وکړه، البتـه د الله رب العزت په توفیق او کمک سره او الله ﷻ دي ما لره ددي توفیق راکـړې چـې زه وتوانیږم چې ددې رسالې څخه پخپله گټه واخلم. او د نورو لوستونکو لپاره د تعلیم سبب ورگرځې، دیو ملگرې دغوښتنې مطابق به زما څخه یې وکړه او ویې ویل چې زما لپـاره په دې عنوان ( په اسلام کې د سلام حکمت او اهمیت) یوه رساله ولیکه. نو ما هم دخپلـې وعدې د پوره کولو لپاره د اللهﷻ په توفیق سره دا ده دا رساله شروع کړه، خو که د املاء او انشاء او نورې علمې نیم کړتیا وې ولرې، نو زما داللهﷻ دبنده علم خو قاصردي.

او زه د لوستونکو څخه د انتقاد پر ځاي د لارښوونکې او عفوي غوښتونکې یـم، ومن الله توفیق .

(السلام) دایو نوم دنیکو نومونو داللهﷻ څخـه دي او والسـلام نـوم پـه معنـې د تسلیمې دي ابوعمرو ددي آیت مبارک په باره کې فرمائې (ادْخُلُواْ فِي السِّلْمِ كَآفَّةً) هغه په اسلام سره معنې کوي. او (سلام) په معنې د سلام و السلام په معنې د پاکوالې له عیوبو څخه او سلام ډیره لویه دوعا او خیرخواهې او په سلام سره د انسان عزت کاوه کیږې.

دسلام معنې دفقهاو له نظره که چیرې یو مسلمان یو بل مسـلمان تـه سـلام ادا کړې نو معنې یې دا ده چې الله رب العزت دي تا زما له شره او دنورو له شرڅخه وساتې.

دریمه معنې یې دا ده چې دسلام اداکونکې د مقابل مسلمان لپاره دخیـر، فـلاح، رستگارئ او کامیابې غوښتونکې دي، نو دا رنگه مسلمان جواب ورکوونکې ومقابل ته د اللهﷻ څخه د ټولو دنیایې او اُخروې عیوبو څخه دساتنې دوعا پـه وعلـیکم السـلام سره ورکوي، او په دوم صورت کې مقابل طرف هم د ویونکې لپاره دده دشر او د نورو

له شر څخه دساتنې دوعــا غــواړي، او په دريم صورت کې دســلام د ادا کـــوونکي لپـــاره دخيــر ، فـــلاح، رســتګارۍ غوښــتنه کــوي چــې د دواړو له طرفه يو او بـل تـه خيـر خـــواهي ده ، حکمـــت يـــې ددوو مسلمانانو په منځ کې دعـا يعنـې د محبت پيدا کيدل. نو ځکه ســلام ادا کول وغيره مسلم ته جائز نه دي.

که باالفرض په يو مجلس کــې مسلم او غير مسلم کســان موجــود وي نو بيا په مسلمان دسلام ادا کول په دارنګه الفاظو سره ادا کوې چــې ( السلام) علی مــن التبيــع الهــدی) يعنې زما سلام دې په هغه چــا وي چې هغه دهــدايت پيــروې کــوي،( مسلمان ) وي او بل دا چــې دســلام لفظ تنها د مسلمانانو په مــنځ کــې دروغ نيتې او خير، ښــيګنۍ علامــه ده، دا مبارک الفاظ پــه نــورو غيــر مســـلمو کـــې نشـــته او دا دالله ﷻ درسول دحکم اطاعت دي او بل کــه چيرې د سلام سره څو نور متبرکــه الفاظ يو ځاي شي نو حتی ثواب او ګټه (۳۰) او (۲۰) او (۱۰) برابــره کيږي لکه چه يو څوک ووايي اسلام علــيکم ورحمــت الله وبرکاتــه، ددې مکمل بدل (۳۰) برابره الله ﷻ خيــر او برکــت سره د ثــواب ورکــوي، او دغه رنګه جواب ورکونکي ته د ټولو الفاظو په ويلو سره الله ﷻ عين (۳۰) برابره ، ګټه، ثواب او خير ورکوي، په عوامو کــې متاسفانه په ډير تأسف سره بايد وويل شې چه هغوي فقط دوعليکم لفظ وايې، ظاهراً خو دا بدل او جائز دي خو ليکن مطابق دمحمد ﷺ دارشاداتو منافي ځکه دې، نــو کلــه چې يهودود به دغرضه ډک دحضور صلي الله عليه وسلم په مقابل کې د سلام تحريــف په ( سام سره ) ويل نو حضور صلي الله عليه وسلم په مقابل کې فقد وعليکم يعنې پــر تاسي دې مرګ وې دا بدل او غرض خاص دهغوې د خبرو دې. نومسلمان بايد يــوازې پر وعليکم باندې بس والي (آتقاً) ونه کړې. او بل د سلام ادا کول په اسلامي ټولنه کــې چې يو بل يې پر ډيرو او ولاړ به يې پر ناستو او سپور به يې پر پياده او کشر به يې پر مشر ادا کوي پدې کې هم حکمت دميني او ادب نغښتې دې او دغه رنګه بل حکمــت د سلام د ادا کولو چه لويان به يې پر ماشومانو د تعليم او نيک عادت نيولو په خاطر ادا کوي او دغه رنګه و کور او مجلس ته د تلو او راتلو په حالت کــې بايــد ســلام او رد د سلام ادا کړي شې، سلام په الهې احکامو او دغه رنګه دهغه رسول صلي الله عليه وسلم په ارشاداتو کې يو ثابت او د مسلمانانو په منځ کې د لازياتې پيرزوينې او مينې محبت سبب ګرزې او کله کله خو بيا د مسلمانو په کې زړه بداوي د دوستې محبت او خپلوي سبب ګرزې، نو په کار ده چه دا الهې سنت ته ډيره پاملرنــه وشــي او ددي ســنت پــه ترغيب او تشويق کې له هيڅ ډول کوښښ او زحمت څخه دريغ ونه شي. موږ په قــران پاک کې د سلام ډير زيات مثالونه لرو، سربيره پر دي سلام د الله جل جلاله او دهغه د ملائکو څخه په جنت کې هم ثابت دي لکه څرنګه چې په آخرت کې ثابت دې نو په ژوند کې خو يې موږ د ژوند په هر حالت کې عملاً ګورو، او دغه رنګه د قرآن عظيم په زياتو آياتونو کې الله جل جلاله سلام ذکر کړي او دغه رنګه په قرآن کې د متارکې او بيــزارې په معنې سره هم راځي. او بيا ډير ځايونه الله جل جلاله پخپل کلام کې دخپلــو نيکــو بنده ګانو د ستايلو په ډول سره ذکر کړيدې، چې ان شاء الله موږ به يې په تفصيل سره بيانوو، د سورة (اعراف) په (۴٦) نمبر آيت کې الله جل جلاله حال د اصحاب اعراف چه هنوز پر اعراف معطل وي او جنت ته د داخليدلو اميد لري، نو پرجنتيانو سلام دا کوې ( سلا عليکم) دجنت اوسيدونکې خو د سلام ځکه متسحق دي، چې الله رب العزت پخپل احسان سره وجنت ته داخل کړيدې، که سرې متوجه شي د سورة (هــود) (۴۸) نمــبر آيت ته چې الله جل جلاله د نوح (ع) داسې ذکر کوي ( قيل يا نوح اهبت بسلامٍ منا) پــه مجهوله صيغه سره الله رب العزت فر مايې ای نوح(ع) په سلامتی سره زموږ له طرفــه کښته شه، او بيا د ملايکو له طرفه څخه سلام پر ابراهيم عليه السلام او د ابراهيم عليه السلام له طرفه دملايکو ته رد دسلام ثابت او دا هم الهې کلام دهود(ع) د ســورت پــه (٦۹) آيت مبارکه کې ثابت دي. (فَقَالُوا سَلاَمًا قَالَ سَلاَمٌ) نو دلته خــو مشــترکه وجهــه

دسلام د ملایکو ابراهیم (ع) ته او
دهغه له طرفه دملایکو ته ثابته ده ،
بل مثال یې په سورة رعد کې (۲۴)
نمبر آیت دي چې الله رب العزت
وجنتیانو ته دجنت د اوسیدلو
سربیره زیرئ ورکوي او ورته د
ژوند دناخوالوپر مشکلاتو یې
سربیره صبر کړي وو، ورته فر
مايې (سَلاَمٌ عَلَیْکُم بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ
عُقْبَى الدَّارِ ۲۴) نو دا سلام او زیري
خو په جنت کې د الله جل جلاله له
طرفه او یا د الله دحکم پر اساس
دملایکو پواسطه جنتیانو ته ورکول
کیږي.. بهترین مثال د سلام چه الله
جل جلاله په خپل کلام کې ذکر
کړي دي، هغه پر یحیی علیه السلام
چې کله وزیږیدي نو الله جل جلاله
پرده سلام وايې او کله چې ومري
او کله چه بیا وقیامت په ورځ بعث
شي الله جل جلاله پر یحیی علیه
السلام سلام ویلي دي، چې هغه
مبارک آیت د سورة مریم ( ۱۵) نمبر
آیات (وَسَلاَمٌ عَلَیْهِ یَوْمَ وُلِدَ وَیَوْمَ
یَمُوتُ وَیَوْمَ یُبْعَثُ حَیًّا) دغه کله چه
سیدنا عیسي بن مریم علیه سلام پر
خپل بنده ګی اعتراف کوي، او وايې
چې زه الله جل جلاله د نبوت په
امیتاز متفخر کړئ یم، او زه یې
برکت ناکه ګرزولي یم( یعنې زه د
الله جل جلاله په حکم مري ژوندي
کوم او داسې نور امتیازات او

دهغو ټولو نسبت الله جل جلاله ته کوي، نو الله جل جلاله لده نه راضي کیږي او سلام
پر وايې دا پدې خاطر چې دده خیر نورو ته رسي، نو عیسی علیه لسلام پردي معترف
دي، چې زه د الله جل جلاله پر ټولو عباداتو لکه لمونځ او زکوة ( یعنې پربدنې او مالي
عبادات باندې معترف او عمل کونکې یم، نو الله جل جلاله هم پر ده ولادت، مرګ، او د
بعث پروخت سلام وايې (وَسَلاَمٌ عَلَیْهِ یَوْمَ وُلِدَ وَیَوْمَ یَمُوتُ وَیَوْمَ یُبْعَثُ حَیًّا ( ۲۳) نمبر
آیت د سورة مریم ددې مدعا مصداق دي چې الله پر خپلو نیکو بندګانو د سلام زیري
کوي، او دغه رنګه د سیدنا ابراهیم علیه اسلام په واسطه دخپل پلار د تشویق او ترغیب
لپاره دوحدانیت والله جل جلاله لره او د پلار انکار یې له وحدانیت څخه او پر شرک
اسرار نو ځکه ابراهیم علیه السلام ( سلام) دمتارکې ( اعلان د بیزارې له خپله پلاره
څخه کوي اثبات یې (۴۷) نمبر آیات دسورة مریم (لَئِن لَّمْ تَنتَهِ لأَرْجُمَنَّکَ وَاهْجُرْنِي مَلِیًّا)
۴۶ ( قال سلام علیک) پلار یې ابراهیم علیه السلام ته وايې چې که ته نه منع کیږې ، نو
په ډبرو به دې ووژنم، اي زما څخه د ابد لپاره لرې شه، نو ابراهیم علیه السلام
دمتارکې سلام ورته وايې او د بیزارې اعلان ورته کوي، او دغه رنګه الله ﷻ دخپلو
بندګانو څخه د رضایت له وجهې څخه خپله وعده ذکر کوي چې زه به دوي ته جنت
ورکوم، چې په جنت کې بیله دعزت او تحیت الفاظ نور څه نشته، چې هغه عبارت له
سلام څخه دي د سورة مریم (٦٢) نمبر آیت ته وګوره (لاَ یَسْمَعُونَ فِیهَا لَغْوًا إِلاَّ سَلاَمًا)
او سورة الانبیاء ته وګورئ چې د سلام معنې دارنګه فرمايې:

کله د ابراهیم علیه السلام قوم په اور کې دده د سوزولو اراده وکوله نو الله رب
العزت اور ته داسې حکم کوي چې (کُونِي بَرْدًا وَسَلاَمًا عَلَى إِبْرَاهِیمَ) ٦٩ نمبر آیت دلته
د سلام معنې نه ډیر سوړ او نه ډیر ګرم دي، دغه دمتارکې د سلام په باره کې بل
دسورة الفرقان (٦٢) نمبر آیت (وَإِذَا خَاطَبَهُمُ الْجَاهِلُونَ قَالُوا سَلاَمًا) یعنې د الله ﷻ
دنیکو بندګانو خوي او خصلت دا دي کله چې د الله له دینه بې خبره او نادان خلک څه
ورته ووايې نو دوي بیا سلام د متارکې او اعلان د بیزارې ورځنې کوي، الله رب العزت
دهغو نیک اهل کتابو چې دخپل کتاب پر حقانیت یې ایمان درلود، او سلام د مبارک دبل
په راتګ یې پر قرآن ایمان راوړ سره لدې چې دخپلو قومونو پر ناخوالو یې صبر وکړ
نو الله رب العزت و دوي لره دنیکې بدلي زیري ورکوي، او دوي دخپل ګمراه قوم جواب
د متارکې د سلام پواسطه ورکوې او روته وايې دسورة قصص په (۵۵) نمبر آیت کې
داسې جواب ورکوې. (سَلاَمٌ عَلَیْکُمْ لاَ نَبْتَغِي الْجَاهِلِینَ) یعنې موږ ستاسو څخه بیزاره او
موږ له دین څخه د بې خبرو مجلس نه غواړو. او بل د الله رب العزت له طرفه څخه په

سورة (یسن) کې هغو جنتیانو ته چې الله ﷻ دجنت ټول نعمتونه نصیب کړي نو الله ﷻ بیا خپل رضامندي په سلام سره ورکوي.

(سَلَامٌ قَوْلاً مِن رَّبٍّ رَّحِيمٍ) چې دا بې اندازې ډاډینه دالله ﷻ له طرفه و خپلو بندګانو ته ده ، په سورة الصافات کې الله ﷻ د اول رسول سیدنا نوح علیه السلام د دعوت ، نیکیو، ستایلو تر ځنګ ترقیامته پورې به په راتلونکو قومونو کې دده نیکې یادونه کوې ځکه نو الله ﷻ د پورته سورت په (۷۹) نمبر آیت کی داسې فرمایې (سَلَامٌ عَلَىٰ نُوحٍ فِي الْعَالَمِينَ) یعنې سلام دې پرده باندې په ټولو عالمونوکې ، او کله چې سیدنا ابراهیم علیه السلام په ډیرو امتحانوکې کامیاب او سرلوړې او د قوم پر ناخوالو یې د صبر او زغم نه کار واخیست او بیا تر ټولو ستر امتحان د خپلې بې بې او ماشوم بچې پریښودل د بیت الحرام په وجه بیدیا او دهغه صبر او بیا د اسمعیل علیه السلام د حلالولو مسئله خو د انسان د تصور نه خارج عمل او بیا د دواړه دصبر بدل، الله ﷻ داسې فرمایې د سورة الصافات په (۱۰۹) نمبر آیت مبارک کې ( سلام علی ابراهیم) یعنې دهره جهته دې دسلامتې زیرې پر ابراهیم وې، او بیا د سیدنا موسی او هارون علیهما السلام دعوت زمانې د ستر جابر او ظالم انسان په مقابل کې چې فرعون وو او دهغوې مقابله او دعوت ، صبر، زغم د حق په لار کې او بیا وروستې کامیابې او دفرعون د (۶۲۰۰۰۰ ) فوځ سره دده په اوبوکې غرقیدل ترقیامته و ټولو مسلمانانو ته دجهاد او جدوجهد دالله ﷻ په لاره کې بهترین او ډاډمن زیرې د کامیابې دهر جابر او ظالم قوت په مقابله کې او بلا آخره د مستضعفینو کامیابې ته دحتمې زیرې شکل ورکول دي، الله ﷻ د سورة الصافات په (۱۲۰) او (۱۲۱) نمبر آیتونو کې زیرې ورکوی (سَلَامٌ عَلَىٰ مُوسَىٰ وَهَارُونَ ۱۲۰ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ) نو دالله د سلام زیرې او مابعد ، مسلمانانو ته زیرې پدې شرط چې هغوې نیک عمل او نیک عقیده خپله کړي، دغه رنګه دسیدنا الیاس علیه السلام مقابل دباطل پرستو په مقابل کې او دهغه علیه السلام جدوجهد دحق لپاره او بیا دالله له طرفه وده ته د ابد لپاره دنیکې یادونې زیرې څه معمولې خبره نه ده چې الله ﷻ فرمایې ( سلام علی آل یاسین) دا ستر زیرې او دغه رنګه بیا راتلونکو قومونو ته دنیکې دعمل کولو په صورت تر ابده زیرې دي، او دغه رنګه په سورة الذاریات کې الله رب العزت د پیژندګلوۍ او ناشناسې په دواړو حالاتو تر هر څه وړاندې دعزت او ادب الفاظ هم په سلام کې نغښتې بولې کله چې ابراهیم علیه السلام ته د انسانانو په بڼه ځلور ملایکې دده کورته راغلي او سلام یې ادا کړ نودې مبارک هم رد د سلام ورته وایې (إِذْ دَخَلُوا عَلَيْهِ فَقَالُوا سَلَامًا قَالَ سَلَامٌ قَوْمٌ مُّنكَرُونَ) کله ملایکو دده عزت او خیر غوښتنه په سلام سره وکړه نو دې مبارک هم په سلام سره دهغوې دخیر او عزت غوښتنه کوې.

او وروسته بیا ورته وایې چې زه خو تاسې نه پیژنم، د سورة الواقعة (۶۹) نمبر آیت اعجاز ته متوجه شې چې الله ﷻ جنتیانو ته په جنت کې دخوراک ، څښاک، او سیدل او د نورو نعمتونو پر احسان سر بیره د دوې دمجلس شعار او عزت فقط او فقط دسلام ادا کول وې چې الله ﷻ په قرآن کې د دوې حال داسې بیانوي. ( الا قیلاً سلماً مسلماً) چې فقط او فقط دخیر ، سلامتې غوښتنه ده دسورت ( القدر) لیلة القدر دشرف او عزت په باره کې تاسو وګورې چې الله ﷻ څومره شرف ورکړیدې، او الله ﷻ ددې شپې عزت (۸۳) کالو او څو میاشتو اضافه د قبول سوې عبادت نصیبه دوعاکوونکې ته ورکوې. په سورة القدر ۵ نمبر آیت (سَلَامٌ هِيَ حَتَّىٰ مَطْلَعِ الْفَجْرِ) الله ﷻ په خپل ذات متبرکه سره ددې لویې او قدر منې شپې درحمت اعلان کوې الله ﷻ دې زمونږ په برخه کړي.

دسلام دحکمت په برخــه کــې چې الله ﷻ کوم ارشــادات پــه خپـل کلام کې ذکر کړيدي، نو که په ځير سره يې سړې وگورې نو رښتيا هــم ددې پاکې کليمــې مــروج کــول پــه فردي او اجتماعې توگه دهر مسلمان د نر او ښځې سپيڅلي دنده ده چې کوښښ وشې سلام پــه ټولنــه کــې نور هم تيت شې، چه الحمــدالله تــر زياته حده مروج هــم دي، اوس بــه راشو دلــوي رب درســول صــلی الله عليه وسلم قول، تحرير او حکم لر ه چې خپل امت يې څومره زيات ددې پاکې کلمې وعمل ته تشويق کــړي، او هم يې خپله د سلام ظــاهري اړخ چې هغه دمسلمانانو پــه مــنځ کــې مينه او خلوص نيت پيداکوي او پــه معنوې حالــت کــې څــومره زيــات دالله ﷻ دهغه په دې سره منسوب او د گټــې خاونــد کيــږي، پــه جــامع الترمذي دوهم جلد ابواب الاســتيذان والادب کې چې څومره دجناب محمد رسول الله صلی الله عليــه وســلم لــه طرفه ددې پاکې کلمې په بــاره کــې احاديث راغلي دي ، موږ به ان شــاء الله د توان په اندازه کې هغــه پــدې مختصره رساله کې رانقل کړو.

امام ترمذي رحمه الله په متصل سند سره له ابی هريرة ﷺ څخــه دا حديث چه رسول الله صلی الله عليــه وسلم وفرمايل، چې تاسې به جنت ته داخل نه شې تر څو يو له بل سره مينه او محبت ونه کړې، نو آيا زه تاسې ته لارښوونه ونه کړم ديوکار چې که چيرې تاســې عمــل پــر وکړې ، نو يو له بل سره په مينه کوې، نو سلام په خپلو منځونو کې زياد کړې، نو کــه حديث ته متوجه شو ، داسې معلوميږي چې د مسلمانانو په منځ کې دمحبت او مينــې وسيله هم د سلام دي. په بل حديث شريف کې دسلام دفضايلو په باره کــې دي، امــام ترمذي په متصل سند سره له عمران بن حصين ﷺ څخه روايت کــوي چــې يــو ســړي رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راغي، او ويې ويل چې اســلام علــيکم نــو رســول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې لس برابره نيکې او بيا بل سړي راغي نو هغه وويل: اسلام عليکم ورحمة الله ، نو جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل چــې شــل ( برابره برکت) . نو بيا دريم سړي دحضور صلی الله عليه وسلم مجلس ته راغي. او ويې ويل چې اسلام عليکم ورحمت الله وبرکاته ، نوجناب رسول الله وفرمائــل چــه ديــرش ( برابره گټه ) او دغه رنگه د رد سلام په باره کې له جناب محمد صــلی الله عليــه وســلم څخه حديث شته، امام ترمذي په متصل سند سره له ابي هريــرة رضــی الله عنــه څخــه روايت کوې، هغه وايې چې يو سړي مسجد ته راغي او رسول الله صلی الله عليه وســلم دمسجد په يوه برخه کې ناست وو، نو راتلونکې سړي لمونځ وکــاوه، او بيــا راغــي، او سلام يې ادا کړ نو رسول الله ﷺ ورته وفرمائل چې وعليکم سلام ارجع ( ولاړ شه) لمونځ وکړه ستا لمونځ ونه شو، نو سړي ولاړ او بيا يې لمونځ وکاوه او بيا راغي او ســلام يــې وکړ، نو رسول الله ﷺ ورته د رد جواب ورکړ او ورته يې وويل ، چې ولاړ شه لمونځ وکړه ستا لمونځ ونه شو، خو حديث شريف اوږد دي، په بل حديث شريف کې د سلام د تبليغ په باره کې امام ترمذي په متصل سند سره له سيدتنا ام المؤمنين عائشه رضی الله عنها څخه روايت کوي چې رسول الله ﷺ ده ته وفرمايل چې جبرائيل عليه اسلام پر ده ســلام وايې، نو دا وايې چې ما وويل پرده باندې دې سلام او رحمت الله وې، سره له برکتونو، بل حديث دهغو دوو نفرو چې د يو او بل په مخه سره ورشې، نو هر چا چه لمړي سلام ادا کړ، نو هغه ډير اجر او ثواب گټلي شې.

امام ترمذي په متصل سند سره له ابې امامة الباهلی ﷺ نه روايت کوی چــې يــو سړي رسول الله ﷺ ته عرض وکړ چې يارسول الله ﷺ دوه سړي يو د بل مخامخ کيــږي نو کوم يو اول د سلام په ادا کولو سره شروع وکړي، نو رسول الله ﷺ ورته وويل چــې ( اولاهما بالله) مقصد هر يو چې مخکې په سلام ادا کولو سره شو، نو هغه د الله ورحمت ته نژدې دي) او بايد چې هير نه شي چې يوازې اشاره په سلام سره يعني بيلــه دلفــظ سلام مکروه ( بدکار دی) ځکه چه يهودو او نصاری دسلام ادا کولو پر ځاي اشاره پــه

گوتو سره کوي، نو څکه دیهودواو نصاري مخالفت اوخو په عبادت کې پر موږ مسلمانانو ډیر لازم دي، پر ماشومانو د سلام ادا کول هم په حدیث سره ثابت دي، سره لدې چې دوي مرفوع القلم دي، خو د دوي دنیک عادت نیولو او تربیې په خاطر باید سلام ورته ادا شې.

مثال یې امام ترمذي په متصل سند سره له انس بن مالک ﷺ څخه روایت کوې هغه فرمایې چې زه د رسول الله سره پر ماشومانو تیر شوم نو جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم پر ماشومانو سلام ادا کړ، نو ددي حکمت دماشومانو عادت کول دسلام سره دې، او دغه رنګه پر ښځو باندې په خفیه الفاظو سره د لاس او ګوتو په اشاره سلام ادا کول نیک او جائز دي، لکه چې امام ترمذي رحمه الله په متصل سند سره له سیدنا اسماء بنت یزید څخه روایت کوي، هغه فرمایې چې یوه ورځ رسول الله ﷺ په مسجد کې پر یوي ډلې ښځو تیر شو، نو دلاس د ګوتو په اشارې سره یې پر هغو په پټو الفاظو سلام ادا کړ، دغه رنګه کله چې سړي خپل کورته داخل شې، نو پر اهل بیتو د سلام ادا کول سنت کار دئ، لکه چې امام ترمذي په متصل سند سره د انس بن مالک ﷺ څخه روایت کوي هغه فرمایې چې مالره رسول الله وفرمایل چې اي زویه! کله چې خپل کورته داخل شوي نو پر خپل اهل د کور سلام ادا کړه، نو دالله ﷻ له طرفه څخه به پر تا او ستا پر اهل برکت نازل شې، دغه رنګه پر ذمي یعنې هغه کافر چې په دار اسلام کې ژوند کوي، نو پر هغه باندې د مسلمان د سلام ادا کول بد کار دي، او امام ترمذي په متصل سند سره له ابې هریرة ﷺ څخه روایت کوي چې رسول اللهﷺ وفرمائیل چې پر یهودو او نصارى باندې تاسې سلام مه کوئ، کله چې دیهودو او نصارى سره پر لاره مخامخ شوي، نو دوي لره پراخه لیاره مه پریږدئ، او په تنګ یې کړئ، او دا حدیث (حسن او صحیح) دي ، دي کې حکمت دا دي چې دوې د الله او دهغه درسول دښمنان دي، او د مسلمانانو سره دښمنې لرې، او په قرآن کې راغې چې مسلمانان باید ( اشدأ علی الکفار) وي ( طنزیه خبره ) ( پام کوه چې د اسلامې ملکونو حاکمان درباندې خبر نه شې)

دارنګه یو حدیث شریف کې راغې چې امام ترمذي په متصل سند سره له ابې هریرة رضی الله عنه څخه روایت کوي او هغه د رسول اللهﷺ څخه چې رسول الله فرمایې : چې سپور به یې پر پیاده، او روان پر ناست ، او کم پر ډیرو او واړه پر مشرانو باندې سلام ادا کوې، او دفقهاوو نظر دي چې د سلام ادا سنت او جواب ورکول واجب ( ضروري دي).

او دغه رنګه د ولاړئ او ناستې پروخت سلام دا حدیث درسول اللهﷺ د امر پر اساس له جناب محمدﷺ څخه ثابت دي.

او سلام د اجازې اخیستلو په سنت سره ثابت دي، او دغه رنګه هر هغه څوک د متیازو په حالت کې وې ، نو سلام ورته ادا کول ښه کار ندي، او دغه رنګه کله چې یوه ډله څوک ویده او څوک ویښ وي نو د ورتګ پروخت باید داسې ادا شې ، چه ویښ یې واوري او ویده لره تکلیف پیدا نه شې، دا هم په حدیث شریف سره ثابت دي، او په یو بل حدیث کې راغلې دې چې یو صحابې فرمایې: زما له رسول اللهﷺ سره څه کار وو، خو هغه ما نه پیژندي ، او دیوې ډلې خلکو په منځ کې یې اصلاح کوله، کله چې جرګه ختمه شوه، نو خلکو ورته وویل چې یا رسول اللهﷺ پدې وخت کې مې وپیژانده، او ورته مې وویل چې وعلیکم یارسول الله وعلیک سلام یارسول الله، نو رسول الله فرمائیل چې داسې مه وایه حُله دا دمړو لپاره ادا کیږې (علیک السلام) دا دمړو دعزت لپاره دي، او ویې فرمائیل چې یو سړي دخپل ورور سره مخامخ شې نو ورته ودي وایې چې اسلام علیکم ورحمت الله وبرکاته او دا صیحح حدیث دي .

یوبل حدیث متبرکه دهغه چا په باره کې چې پر لاري ناست وي . له برأ بن عازب رضی الله عنه څخه روایت دي چې یو ډله انصار پر لار ناست وه، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمائیل چې که چیرې تاسې ته بیله دلارې پر سر بل ځاې نه وو ، او ستاسې لپاره لاچاري وه؟

نو تاسې سلام رد کې، او پر لار تیریدونکې ته چې مسلمان وي ازار مه رسوي او لار وروړته وښوي، پدې حدیث کې حکمت دا دي، چې دلارې پر سرناسته یو نامناسب عمل دي او سړي بايد د تیریدونکې د اذیت سبب نه شي، او دا نیک کار ندي، په صحیح البخاری د سلام دشروع په باره کې سیدنا امام البخاری رحمه الله په متصل سند سره له ابې هریرة ﷺ او هغه بیا درسول اللهﷺ څخه نقل قول کوي، رسول الله فرمایې کله چې الله رب العزت آدم علیه اسلام دخپل صورت په ډول سره پیدا کړ او اوږد والی د وجود یې ٦٠ شرعي گزه وو نو الله ورته وویل، چې ولاړه سه او پردی ډله دملائکو سلام ادا کړه ، او بیا غوږ ورته ونیسه دوی لره او دا ستا د اولادي عزت دی ، فقال السلام علیکم، فقالو اسلام علیکم ورحمت الله ، او زیادت یې ورکړ ورحمت الله، او الله دا هم ورته وویل چې ټول جنتیان به پر صورت د ادم علیه السلام وجنت ته داخلیږی، او خلق به تر آخره دقد په لحاظ سره لنډیږی په ژوند کې ، دجناب محمدﷺ دمتبرکه احادیثون مشهور او معتمد کتابونه دسلام په باره کې مستقل بابونه لري او دا هغه نیک عبادت دي چې د اسلامي ټولنې غړې لکه د تسبوح د تارغوندې، دټولنې دمسلمانانو دیوي ځای والې محبت او له یوبل دعلاقي او پیوستون سبب گرزي، نو دسلام حکمت هم دا دي چې جناب محمدرسول الله صلی الله علیه وسلم ﷺ دسلام سپارښتنه کوي او فرمایې (افشوسلا) دالله رب العزت په کلام کې دنور سورت (٢٧) نمبر آیت مبارک یو حکمي آیت دي او متوجه شي (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لاَ تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّى تَسْتَأْنِسُوا وَتُسَلِّمُوا عَلَى أَهْلِهَا ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ) لفظې تحلیل تستأنسو په لغت کې د اجازت په معنې، ابن عباس فرمایې الا ستثنأ طلب دیوشي له انسان څخه او فرمای دا آرامي دزړه او زړه اطمنان دي، او ځینې بیا وایې چې الاستثنا دا غوښتنه دیوشي له انسانه څخه چې کله یې په سترگو وویني، امام طبری بیا وایې چې دا اجازه غوښتل د کور والا څخه نو که اجازت ورکړ شي نودی آنس پیداکې او داخل شي، او معنې داجازی او سلام داخلیدل ورکورته دغیر دي، نو حکم (دخیر لکم) یعنې هم دغه سلام ستاسو لپاره به خیر کې دي، له ورتگ څخه بیله اجازې.

اجمالي معنې الله رب العزت خپلو مؤمنو بندگانو ته ادب ورکوي، او را بولي یې، دادب خواته په سبب داجازې او سلام سره پر کورولا باندې او منع کوي خپل بندگان له داخلیدو څخه بیله اجازې، ځکه چې اجازه نه وې نو کیداې شي چې سترگي پر هغه ولگیږې. چې لیدل یې وده لره حرام او بدکار دي، او حکمت په سلام او اجازه کې دا دي ، چې له ده څخه خطره او شک د خلکو لرې کوې. او دکور والا په مخ کې محترم او دعزت خاوند کیږې، او بل حکمت دا دي چې که چیرې په کور کې څوک نه وې وهغه ځاې ته داخلیدل ممنوع دې، او دا اسلامي ادب دي، او نیکه تربیه او لارښوونه دده ومسلمانانو ته .

باریکې او حکمت : اول : دالله ﷻ خطاب او په المؤمن خطاب دا ډیر اوچت او لوی نوم دي، اوکافر خو بیا مستحق دعزت نه دی، اوبل صفت دکور (غیر بیوتکم) خارج مخرج العادة ځکه په اصل کې هغه عبارت له هغه کور څخه دي چې سړی سکونت بکښې کوي، او خپل ملکیت یې وي، او تنکیر د الله په قول (بیوتا) به عموم باندې دلالت کوې، بل دا قول (حتی تستأنسو) په دې کې دقیقه معنې له دی څخه مجرد لفظ مقصد نه دي، بلکه مقصد پیژندل د زائر چې کور والا دده په راتگ راضې دي او که نه سلام په حکمي لحاظ اول حکم : ایا سلام وړاندې له استئذان دلالت کوي .

لاکن جمهور علما په دی باندې متفق دی چې اول سلام او بیا استئذان دی، دجمهور علما دلیل په دي حدیث متبرکه کې دئ چې یو سړي دبنی عامرو درسول الله ﷺ څخه اجازت وغوښت او دی په کور کې وو راتلونکې سړی وویل چې (الج) یعنې درشم، نو بنې علیه السلام خپل خادم ته حکم وکړ، چې ورووزه او دی په استئذان پوه کړه، او ورته ووایه ! چې ووایه اسلام علیکم، درشم؟ اوبل حدیث د ابې هریرة رضی الله عنه څخه دي چې هغه فرمایې: ( فیمن یستئاذن قبل آن یُسلم قال لایستئذنوه حتی یسلم) هر هغه څوک چې دسلام نه بغیر د درتلو اجازه غواړې نو اجازه مه ورکوي، تر څو چې یې اول سلام نه وي ادا کړي.

بل حدیث له عمررضی الله عنه څخه دی ( ان عمر رضی الله عنه استأذن علی النبی صلی الله علیه وسلم فقال السلام علی رسول الله ایدخل عمر) یعنې عمر رضی الله عنه پر رسول الله ﷺ باندې اوله سلام ادا کړ او بیا یې دورتلو اجازه وغوښتل، گرچې دداخلیدلو لپاره اجازه تسبیح تکبیر او تحمید هم جواز لري خو لیکن د سلام اداکول بهتر دی او بل دالله دستر عبادت (لمانځه) اختتام په اسلام علیکم پرملایکو او صفت والاخلکو سرته رسیږي، څرنگه چې سلام د اسلامي شعائرو څخه دعبادت یو جز دی، او نن سبا په دي سنت سره الحمدالله څه نا څه د مسلمانانو په منځ کې عمل پرې کیږي، خو لیکن د اسلامې شعائرو دنورو په باره کې ننې مسلمانان کمزورې دی، او اسلامي شعائر چې الله جل جلاله او دهغه ر سول ﷺ په سختې سره دهغه غوښتونکې دي او مسلمانانو هغو ته شا کړي ده لکه معاملات، احکام، بیوع، قود، مکافات، مجازات ، جهاد، اسلامي علم دا ټول متروک چې په اسلامي ټولنو کې د هیریدولو په حالت کې دې او یا یې دعمل غوښتونکې ته په ژوند کې په ډیر ټیټ نامه کتل کیږی، او دا اسلامي شعائر چې ټولنه کې د تطبیق لپاره دننې بې لارې ټولنې سره په ضدیت کې بولې او وایې چې دا دننې ټکینالوجې او ساینسې عصر۔ سره اړخ نه لگوې، نو ځکه خوارې او ذلت زمونږ په برخه ده دوعا کوو چې الله مسلمانانو ته پر اسلامي ټولو شعائرو دعقیدي او عمل کولو توفیق ورکړې (آمین) .

## له تاجکستانه به هغه کسان حج ته ځي چې عمر يي له ۳۵زيات وي

د تاجکستان حکومت پريکړه کړې چې تردې وروسته به يوازې هغه کسان چې عمريې تر ۳۵ کلونو زيات وي، له دې هېواده حج ته د تگ اجازه لري.

د تاجکستان حکومت ويلي چې په دې هېواد کې د سپين ږيرو شمېرزيات دی او د دې لپاره چې حج ته د تگ لومړيتوب ورکړل شي، پرځوانانو دا بنديز لگول شوی دی.

خو د تاجکستان زيات خلک داسې فکرکوي چې حکومت غواړي په ځوانانو کې دجهادي افکارو د ودې او په اصطلاح له سخت دريځو ډلو سره د يوځای کېدو مخنيوي وکړي

تاجکستان اته نيم مليونه نفوس لري او هرکال تر۶۰۰۰ زيات تاجکان د حج لپاره سعودي عربستان ته ځي.

په دې هېواد کې چې اکثراوسيدونکې يې مسلمانان دي، په ښوونځيو کې د نجونو پر پوړني بنديز دی.

د تاجکستان حکومت په وروستيو کلونو کې زرهاوو ځوانان چې په مدرسو کې د سبق لپاره نورو هېوادو ته تللي وو، بيرته ستنيدو ته مجبورکړي دي.

خو بيا هم ويل کېږي چې زيات شمېرتاجکان په عراق او سوريه کې د اسلامي دولت په نوم د افراطي ډلې په ليکو کې شامل شوي او په ملاتړيې جنگيږي.

د تاجکستان د اسلامي نهضت يوه مشر ازادي راډيوته وويل چې پرخلکو داسې بنديزونه، د قانون مخالف کاردی او ان کولای شي چې په دې هېواد کې د افراطي نظرونو د زياتيدو سبب شي.

# دغربپاله «اسلامي» مفکرینو په اره

جلالي

زه یو مهالې له هغو اسلامي مفکرینو، چې دیموکراسي اسلامایز کوي او عموما غربي مفاهیمو سره ټکر نه غواړي، متاثر وم. خو اوس قانع شوی یم چې دا خلک اسلامي روح نه شي تمثیلولای، دوی یو هدف لري، هغه دا چې اسلام صیقل کړي او له غربي ارزښتونو سره یې یو شان ښکاره کړي. دوی د دې له پاره دلایل تراشي.

د شوروي اتحاد د پیاوړتیا پر مهال به ځینو اسلامي مفکرینو دې ته دلایل تراشل چې اسلام له سوشیلېزم او بیا له کمونېزم سره چې دین رټي، یو شان ښکاره کړي او ووایي چې اسلام هم اقتصادي سوشیلېزم غواړي. زما یو ملګری له مارکس نه ډېر متاثر و، ما ته به یې ویلې، چې که علما هوښیار وي، اسلام دې له سوشیلېزم سره په ټکر کې نه تفسیروي!

په دې وروستیو کې چې مې په پوهنتون کې د قانون فلسفه (جیورېسپروډنس) ویلې او لږ لږ مې غربي سېستم تعقیب کړ، دې پایلې ته رسېدلی یم چې دیموکراسي، لبرلېزم، نشنلېزم، کېپېټلېزم، پوسټ مودرنېزم، پازېټېوېزم او بیا دقیقا یوټېلېټېرینېزم... دا ټول د یو پراخ ټولنیز بدلون د شرحې له پاره جوړ شوي مفاهیم دي، چې موږ نه ورسره جوړېدای شو او نه ورته اړتیا لرو. غربیان پر دین باندې راپورته شول او دین یې یو طرف ته کړ، بالآخره له یوې خلا سره مخ شول، چې اوس یې په پورته ذکر شویو نظریو پوره کوي.

زموږ اسلامي مفکرین باید د دې هڅه ونه کړي. اسلامي یو الهي دین دی، یو کامل دین او داسې دین چې د انسان د فطرت مطابق لارښوونې لري. ضرورت نه شته چې موږ یې پرون د دې له پاره چې شوروي زه زور کې وه، له شوروي سره موافق تفسیر کړو او نن د غرب د حاکمیت له پاره. سبا ښایي ځینې کسان د چینایي غلبې پر مهال اسلام بېرته له سوشیلېزم سره ورته ښکاره کړي او ووایي چې د چین حکومتي سېستم اسلامي دی!

ما چې د محمد محق لیکنې ولوستې، له مصري «منځلارو» اسلامي مفکرینو یو قدم وړاندې شوی دی. دی له محمد ارکون او ځینې نورو خطرناکو خلکو متاثر دی، چې دینداري خو یې هېڅ نه وه، مګر له قرآنه هم منکر و او پر قرآن یې هم نیوکه کوله...

دوی د اسلام له غمه نه دي مړه. نه د مسلمانانو فکر ورسره شته. نن په نړۍ کې د اسلامي بنسټپالنې او پراخو جګړه جرړه امریکا وضعه کړې. همدا چې اسلامي بنسټپالنه بلل کېږي، د سرې جګړې پر مهال دوی تمویلول او زمینه یې ورته برابروله. نننی داعش ته چا زمینه برابره کړه؟ اوس خو په افغانستان کې په خپلو سترګو وینو چې دوی د داعش د رامنځ ته کولو له پاره پراخ کمپاین شروع کړی. په افغانستان کې د جګړې، اداري فساد او عموما ټولې ګډوډۍ لاملین همدوی دي. په عراق او افغانستان کې دوی کیمیاوي وسلې استعمال کړې دي. ماشومان، ښځې، بوډاګان او ټول غیر محاربین یې قصدا وژلي. په زندانو کې د غیر اخلاقي کړنو او غیر نساني تعذیب راپور خو یې خپله خپور کړ، ګوانتانامو غیر قانوني زندان لا هم نه دی بند؛ عموما د نړیوال قانون او نړیوال بشري قانون اصول یې تر پښو لاندې کړي دي.. خو دغو مفکرینو ته امریکا لا هم د تمدن نمونه ښکاري او وایي چې امریکا باید اسلامي نړۍ کې دیموکراسي خپره کړي!

ما چې د محمد محق لیکنې ولوستې، پر ټولو اسلامي حرکتونو نیوکه کوي. د دوی ټول ښه افکار یوې خوا ته بدي او اسلام ته په خدمتونو یې سترګې پټوي او دې ته ګوري چې چېرته یې د ضعف ټکی ومومي او نیوکه پرې وکړي! د ده ټولې نیوکې پر اسلامي حرکتونو دي او د ترورېزم او وحشت اساس چې امریکا بلل کېږي، هغه ته لا هم لاس نه وروړي او په اوچته سترګه ورته ګوري.

داسې خلک په اسلامي نړۍ کې ځای نه لري. یو څه موده به د رنګین دادفر سپنتا پروژې وچلوي او یو څو اسلام دوښمنه به خوښ کړي، چې پروژې ختمې شوې، بیا یې څوک پېژني هم نه. ان شا الله.




# افغانستان د طالبانو

ليكوال
**أنس شيرزاد**

# د بيا واکمنۍ په انتظار کې...

۱۴ کاله وروسته يو ځل بيا داسې ورځ راغله چې افغانان د طالبانو د بيا واکمنۍ انتظار کاږي ، انتظار يوازې ددې دی چه کله به کابل بيا د تير په څير د طالبانو لاسونو ته لويږي ، دا کومه ناشونې خبره او يا کومه معجزه نه ده بلکه د بيلا بيلو او غښتلو دښمنانو پرضد د وسلوالو طالبانو د بې سارې مقاومت ، د افغان دولت د ناکامۍ ، فساد ، د ملت په وړاندې د رسوايۍ او د بهرنيو ځواکونو د اسلام او افغان دښمنه کړنو نتيجه ده ، هغه نتيجه چې غواړې دتير په څير يو ځل بيا خو په بيل رنگ ، نوي شکل او لباس کې را برسيره شي..

هغه څه چې بهرنيانو يې مخنيوی کاوه او له امله يې ۱۴ کلونه په افغانستان کې وجنگيدل ، ډول ډول مبارزې او پلانونه يې پرمخ يوړل ، خپل سرتيري او بې خرته مالونه يې له لاسه ورکړل ، د خپلو ولسونو اعتماد او ملاتړ يې له لاسه ورکړ ، نن د خپلو غلطو استعماري پاليسيو او د افغان دولت د بې کفايتۍ ، ناکامۍ حکومتدارۍ او مغرضو چارواکو له وجې له هماغه څه سره مخامخ شول چې ترې ويريدل ، دا دی ولس نن بيا طالبانو ته د ښه راغلاست نارې وهي ، خپل راتلونکی ورپورې تړي ، د دولت پر ځای د دوی محکمې او د انصاف تلې ته ترجيح ورکوي ، طالبانو که يوشمير غلطۍ وکړې خو بيا يې خپلې تيرې تيروتنې د ولس سره په ښيگنه جبيره کړې ، د دوی زړونه يې را خپل کړل او دا د دوی ډيره کاميابه پاليسي وه ، خو په مقابل کې کابل دولت بيا برعکس کار وکړ ، خپلې تيرې غلطۍ يې په نوو تيروتنو نورې هم سترې او ژورې کړې ، اکثر وخت يې د ولس سره هغه معامله وکړه کومه چې له طالبانو سره کوې ، پرځای ددې چې د دوی سره يې له نرمۍ او حکمت نه کار اخيستی وای د زور لار يې خپله کړه خو هغه مشهور متل دی چه په زور کلي نه کيږي . همدا وه چه په هر ولايت او د هيواد په هر گوټ کې د دولت پر ضد مخالفتونو سر را اوچت کړ ، ډيرې افغانانو د انتقام او غچ اخيستې لپاره د طالبانو ليکو ته ورمنده کړه ترڅو له هغو نا اهله ، بد چلنده او ظالمو حکومتي چارواکو خپل غچ واخلي چې خپل خپلوان او دوستان يې ورته وژلي او کلي او کورونه يې ورته په بمباريو نړولي...

طالبانو هم د وخت او مناسب فرصت نه په استفادې سره خپل ځان بيا د يو منلي او غښتلي قوت په څير ولس او نړۍ ته راښکاره کړ ، په هر ولايت کې يې خپل وجود ثابت کړ ، د خلکو لپاره يې د لانجو د هوارولو په موخه سيمه ييزې محکمې جوړې کړې او دا محکمې يې بيا په عدل او انصاف ابادې کړې چې له امله يې د خلکو زړونه د دوی په لورې رامات شول

نن چې رسنۍ په وار وار دا خبرونه خپروي چه طالبان د افغانستان په ۷۰ او ۸۰ سلنه خاروې نفوذ او کنترول لري او یا په ۶۰ سلنه خاروه یې خپل عملیات روان کړي وجه یې د دولت لخوا د ولس سره غیر عادلانه تعامل دی ، که چیرې دولت هر افغان ته خپل حق د عدل او انصاف په تله تللی وای نن به حال بل ډول وو نه دا چه مونږ یې په سترګو وینو او په غوږو اورو ځکه د هر فعل رد فعل شته.

په اصطلاح د ملي وحدت د حکومت له رامنځته کیدو دادی کابو یو کال پوره کیدونکی دی خو چارواکې یې لا تر اوسه په هغو شخړو کې نغښتي چه باید د نوي حکومت په لومړنیو اونیو کې حل شوی او د پای ټکی ورته ایښودل شوی وای ، هر څه یې د ناکامۍ لورې ته روان دي ، هیڅوک هم د شپې له ویده کیدو مخکې د ړون او روښانه سهار انتظار نه کاږي ځکه دوی پوهیږي چه ددا سې حکومت په شتون کې ددې ا نتظار هیڅ ګټه نشته ، حالات او وخت دواړه پخپله د طالبانو بیا راتګ او د دوهم ځل لپاره په کابل د دوی واکمنۍ ته لاره هواره وي ، دا دی په هر ولایت کې د دولت پر ځای د دوی بیرغونه رپیږي ، په هر مظاهره او پاڅون کې د دوی په ګټه او پلوی نعرې او شعارونه پورته کیږي ، له کابل او ځینو نورو ولایتونو پرته د هیواد په اکثر سیمو کې خلک د خپلو لانجو او ستونزو د هوارولو لپاره د دوی دروازې ټکوي ، د یو موجود او شته دولت دننه د بل چا واک ، فیصلې ، قضاوت او اختیار د همدې ښکارندوی دی چې دا دولت په هیواد کې د یو څو شپو میلمه دی او ډیر ژر کیدای شي ترې کډه وکړي

که څه هم ډیر خلک د طالبانو د بیا واکمنیدو سره مخالف ول او ددې لامل دطالبانو ځینې تیروتنې او یو بل لامل یې د دوی پر ضد د بهرنیانو تبلیغات ول خو ددې مخالفت کچه ورځ تر بلې کمیږي ، د خلکو حساسیت دطالبانو له شتون سره ورځ تر بلې په ختمیدو دی او نږدې دی یو ځل بیا د تیر په څیر د دوی سره عادي شي ، که څه هم دا به نور وخت هم واخلی خو په دې کې شک نشته چې هرو مرو به همداسې کیږي ځکه چې موجوده حالات ددې غوښتنه او تقاضا کوي.



# زه تاسف کوم ما وبښه ...؟

میره: د مازدیگر لمونځ دي کړی؟

میرمن: نه

میره: ولې؟!

میرمن: سخته ستړې وم ویده شوې وم..

میره: ښه.. اوس د مازدیگر او ماښام دواړه لمنځونه وکړه. سبا سړی کار ته ولاړی، څو گړۍ وروسته کارځای ته ورسید، میرمنې ته یې نه موبایل وکړ او نه یې لیک ورته راولیږه چې زه په خیر ورسیدلم، که څه هم د ده عادت و چې خپلې میرمنې ته به یې کارځای ته د رسیدلو حال ورکاوه. د میرمنې یې اندېښنه شوه موبایل یې ورته وکړ څو یې په خیر د رسیدلو ډاډ ترلاسه کړي خو هغه موبایل ځواب نه کړ، د هغې اندېښنه زیاته شوه ډېر ځله یې موبایل ورته وکړ زنګ هم ورتلو خو ځواب نه و!. خپه شوه له ځانه سره یې کړه ده خو داسې کله هم نه کول یا الله ته خیر پېښ کړې.. څو ساعته وروسته د هغه له لوري موبایل وشرنګیده او دې په بیړه ځواب کړ په الویزانده لهجه یې ورته وویل: په خیر ورسېدې؟

میره: هو، الحمدلله

میرمن: څومره وخت کیږي چې رسیدلی یې؟!

میره: تقریبا څلور ساعته کیږي

میرمن: دا څلور ساعته دي ولې ماته حال رانه کړ؟! (په غوسه)

میره: چې ورسیدم ستړی وم لیږ ویده شوم

میرمن: دومره چې زما سره دي دوه درې دقیقې خبرې هم نشوی کولی .. او بیا چې ما موبایل درته کاوه هغه دې نه اوریده؟!

میره: اوریده مې..

میرمن: نو ولې دي نه ځوابوه! دومره توجه هم نه راته کوې!!

میره: ته چې پرون ماښام ویده وې اذان دې نه اوریده؟! د الله اواز..

میرمن یې وشرمیدله چوپ پاته شوه.. لیږ وروسته یې زیاته کړه: ته په حقه یې، زه تاسف کوم، ما وبښه..

میره: زما ښښنه گټه نه درته کوي، له الله نه ښښنه وغواړه او بیا داسې مه کوه، زما لویه موخه دا ده چې په دنیا کې د الله په بندگې کې ژوند سره وکړو څو په اخرت کې هم د الله په ښایسته جنتونو کې تلپاته ژوند سره ولرو. او میرمنې یې د خپل گران او هوښیار میره دا حکیمانه چلند داسې پند کړ چې هیڅکله یې بیا لمونځ ناوخته او قضا نه کړ. څوک چې ستاسو سره رښتینې مینه لري هغه مو د الله لورته په غځېدلې لاره کې پرمختگ ته هڅوي.

د کور وگړي مو په نرمې، مینه او حکمت سره د الله لارې ته برابر کړئ، د مینې او حکمت په پایله کې منل شوي نصیحتونه تلپاته او خوندور وي، په ځانکړې توگه له خپلو میرمنو، خوندو، لونو او نورو ښځمنو سره خورا زیاته نرمې او خوږلښت غوره کړئ د هغوی زړونه شیشې دي په سخته، تروشه او سپکه خبر خچنیږي او ماتیږي، رسول الله صلی الله علیه وسلم په یوه سفر کې خپل غلام انجشه ته وایې: د میرمنو اوښان کرار ولـه دوی شیشې دي. یا أنجشة رویدك سوقا بالقوارير " . رواه البخاري [ ٦١٤٩ ] ومسلم [ ٢٣٢٣ ]

ليکوال : مولوی حامد

# محتوی سیاست

ا یا نړیوال سیاست د نړی د وګړو حقوقو ته محتوی ده کنه د اوسنی سیاست پوهان او سیاست وال د نړی موجوده سیاست د نړی د وګړو حقوقو ته محتوی بولی خو که چیری د دوی نظرته مونږ په دقیق اوعملی نظر وګورو سیاست پوهان خپل دی نظر کی یو زیات وا ټن خطا دی ځکه محتوی سیاست هغه سیاست دی چی د وګړودینی او ملی حقوقو ته محتوی اومتکی وی خو دی کی بیا شک نشته چی دی نړی عامه سیا ست د دوی ملی او اقتصادی منافعوته محتوی ده خو د وګړو دینی او ابدی ژوندون ته په دی سیاست کی کومه برخه نشته نو لهذا دغه سیاست وال باید په خپل نظرکی تجدید نظر وکړی ترڅو دوی خپل اساسی هدف ته لاس رسی دیو محتوی سیاست له لاری وکړی هغه سیاست چی ټول بشریت ته محتوی وی هغه سیاست ده کوم چی ایمه الدین او محقیقینو سیاست والو بیان کړی لغتا او اصطلاحا

په لغته کی سیاست رعیت داری کردن او په اصطلاح کی سیاست هو نظام حافظ علی حقوق الله و حقوق العباد یعنی سیاست هغه نظام ته وایی چی حافظ وی حقوق الله او حقوق العباد لره د سیاست له دی تعریف نه معلیږی چی هغه سیاست چی محتوی وی دینی اوملی حقوقو د وګړو ته همدا سیاست ده ځکه ددی سیاست په لغوی معنی کی رعیت داری ده حقه رعیت داری هغه ده چی د وګړو دینی او ملی منافعو ته په کی پاملرنه شوی وی لغتا خو د اسیاست محتوی اومتکی شو اصطلاحا هم دا سیاست محتوی او متکی ده ځکه په اصطلاحی معنی کی دا راغلی چی حافظ علی حقوقو الله و حقوق العباد په حقوق الله کی د وګړو دینی حقوقو ته اشاره ده حقوق العباد کی د وګړو ملی حقوقو ته اشاره د ه لهذا دغه سیاست هم لغتا هم اصطلاحا جامع او منافع ده دنړی مشران باید د خپل مسئولیت د رفع کولو لپاره له یو داسی سیاست نه کار واخلی چی د دوی د ملت ټول حقوق په کی خو ندی وی ځکه د هرملت مشران د خپل ملت په وړاندی د دوی د ټولو حقوقو مسئول دی خصوصا هغه مشران چی دیو اسلامی ملت ذمه واری ورپه غاړه وی لازما دیومحتوی سیاست خاوندان وی ترسود خپل اسلامی ملت په وړاندی خپل مسئولیت رفع کړی ترڅو عند الله وعند الناس بری ذمه وګرزی ایا د نړی موجوده نظامونه لکه د یمکراسی وغیره په یو محتوی سیاست ملبس دی کنه که چیری محقیق سیاست وال د ی نظامونو ته په د قیق اوعملی نظروګوری نو دا نظامونه به له یوه محتوی سیاست نه معراءاو تش په نامه نظامونه وبولی ځکه دغه موجوده نظامونه د بشریت ټولوحقوقو ته کاملا درناوی نلری البته هغه نظامونه چی د بشریت ټولو حقوقو ته په کی کاملا درناوی شوی ده خلافت او شخصیت دی ځکه دغه نظامونه په یو محتوی سیاست ملبس او محلاء دی په دی نظامونه کی هم داشی مراعی ده هوحافظ علی حقوق الله وحقوق العباد او د محتوی سیاست په تعریف کی هم دا مراعی ده هو حافظ علی حقوق الله وحقوق العباد لهذا خلافت او شخصیت یعنی شاهی نظام هغه نظامونه د ی چی پکی د بشریت ټول حقوق مراعی او ماسواله دینه هغه نظامونه دی چی پکی د بشریت حقوق غیر مراعی دی که چیری په دی دواړو نظامونو کی انسانی حقوق پایمال شی دا به دنظام تقصیر نوی بلکی دا به د هغو اشخاصو تقصیر وی چی دنظام په رئس کی واقع دی ځکه دغه دوه نظامه نظام من حیث النظام یو قسم نیمګړ تیا نلری البته هغه نظامونه چی د جمهوریت د احاطی لاندی واقع دی لکه دیمکراسی یاغیره په دی کی نیمګړتیا من حیث النظام واقع ده.

# حنيف اتمر:

## د ترون له برکته! هره ورځ ۱۲ میلیونه ډالره تر لاسه کوو

کابل رژیم د ملي امنیت سلاکار او له واشنګټن سره د امنیتي تړون لاسلیکوونکی حنیف اتمر وایي چې په تړون کې لیکل شوې مادې تر اوسه پورې په «سمه» توګه پلي شوي دي.

نوموړی وایي چې د همدې تړون په برکت امریکا له افغان عسکرو سره هره ورځ ۱۲ میلیونه ډالره مرسته کوي.

حنیف اتمر چې د مشرانو جرګې په استجوابیه غونډه کې خبرې کولې وویل چې نوموړی د امنیتي تړون په لاسلیک پښېمانه نه دی او په خبره یې د ګډ حکومت له پیله تر اوسه دا تړون په «ښه» توګه عملي شوی دی.

د نوموړي په خبره د اردو، پولیسو او اربکیانو په ګډون ټول ۳۵۲ زره مسلح عسکر موجود دي، چې د دوی د ۴۹۰۰ میلیونه ډالره لګښت ډېره برخه «۴۲۰۰» میلیونه ډالره امریکا او پاتې ۷۰۰ میلیونه ډالر د ناټو غړي هېوادونه ورکوي.

د مشرانو جرګې غړو د ملي امنیت سلاکار حنیف اتمر په هېواد کې د وروستیو ناامنیو او د تړون د «بې فایدې» ثابتېدو په خاطر پرون سه شنبه خپلې استجوابیه غونډې ته ور غوښتی و.

حنیف اتمر په دې اعتراف وکړ، چې د دوی عسکر له سختې جګړې سره مخ دي، خو په خبره یې د دولتي عسکرو مورال لوړ او د امریکا تمویل ورسره دی.

که څه هم نوموړي د بهرنیانو په اړه یوازې د افغان عسکرو د تمویل، روزنې او سلا مشورې خبرې وکړې، خو په ګڼو پوځي عملیاتو کې لا هم افغان عسکر په بهرنیانو تکیه کوي.

حنیف اتمر په داسې حال کې د عسکرو د ورځني لګښت حیرانوونکې مرسته په ډاګه کړه، چې څو ورځې وړاندې په هلمند کې د ملي اردو ګڼو عسکرو په اعتراضي ډول وویل چې د ګډ حکومت له پیله یې معاش نه دی اخیستی.

د کره سرچینو له قوله په هلمند جګړه ښکېل ولایت کې شل زره د اردو عسکرو ته تر اوسه هم معاش نه دی ورکړل شوی.

د هلمند له سنګین نه یو تن را تښتېدلی عسکر چې د نوم له خپرولو یې ډډه کوله ننګکی اسیا ته وویل چې دوی د دې حکومت له پیله یوه افغانۍ معاش نه دی اخیستی، د نوموړي په قول له سیمې د تښتې لاره نه وه، خو له خپل ټیپي ملګري سره تر کابل او له کابله خپل کلي ته ورسید.

هغه وویل چې بیا یې زړه نه غواړي چې د عسکرو په لیکو ور ګډ شي.

تر دې وړاندې په هرات ولایت کې د نظم عامه پولیسو هم د لاریون په ترڅ کې په ګډ حکومت غږ وکړ، چې د دوی د تېرو شپږو معاشونه دې ورکړل شي.

د سرچینو له مخې په پلازمېنه کابل کې هم ارګ ته نوي ننوتي کارکوونکي پر دې نه دي توانیدلي چې د خپلو تېرو نږدې اوو میاشتو معاشونه تر لاسه کړي.

حنیف اتمر ونه ویل، چې دوی له امریکا نه تر لاسه کېدونکو مرستو اړوند کوم اسناد لري او چېرته مصرفېږي، خو تر دې وړاندې له ۲۰۰۲ م نه تر ۲۰۱۴ م پورې د امریکا د دفاع وزارت له لوري د شویو ۶۰ میلیارد ډالرو مرستو له منځه ۲۱ میلیارده بشپړ لا درکه شول، چې نه یې پنټاګون او نه یې هم افغان چارواکي اسناد لري

# د ملي اردو او پولیسو معیوب عسکر د حکومت

# او ولس له خوا رټل شوي

## نیویارک ټایمز

صاحب یو ستونزه لرل، د هغه چپه پښه د طالبانو په یوه بم کې له منځه تللې وه، هغه د مصنوعي پښې وس نه درلود، خو ددې ستونزې په مقابل کې هغه یو حل لاره درلودل، د هغه ۱۱ کلنه لور، نور بي بي. صاحب نور بي بي په ۳۰۰۰ ډالره خرڅه کړه، تر څو د ځان لپاره نوې مصنوعي پښه رانیسي.

صاحب یو د هغو لسګونو زرو عسکر او پولیسانو څخه دی، چې د حکومت لپاره یې په اوږده داخلي جګړه کې قرباني ورکړې.

خو په مقابل کې هغوی د یو ناکافي حکومتي ملاتړ سره مخ دي، او په پوره بې تابۍ د ژوند کولو لپاره د بل فرصت په تلاش کې دي.

که څه هم د ملي اردو او پولیسو ځیني معیوب منسوبینو ته کومک رسیږي، خو هغوی بیا ځان د ټولني څخه لیري محسوسوي، ځکه چې په افغاني ټولنه کې معیوبو کسانو ته د ناکاره پرزو په توګه کتل کیږي او سم چلند نه ورسره کیږي.

په داسي یوجګړه کې چې هغه کال په کال تونديږي، د معیوبینو شمېر هم مخ په زیاتېدو دی، د ملي اردو او پولیسو منسوبین ډیر ځله د مخالفینو د بریدونو څخه ژوندي ووزي خو په ټپي او معیوب حالت کې، چې له کبله یې د افغان حکومت او نړیوالو خیریه موسسو تر امکاناتو ستونزه غټیږي.

د یوې ډیري محتاطي اندازې سره سم د ملي اردو او ملي پولیسو د معیوبینو شمېر تر ۱۳۰،۰۰۰ اوښتی، چې په هغو کې یې ۴۰۰۰۰ زره داسي دي چې اعضاء یې کاملا پرې شوي، دا احصائیه د حکومت د هغو لیستونو پر اساس ورکړه شوي کومو ته چې حکومت خپل مهانه معاش اوس هم ورکوي، او ډیری داسي معیوبین شته چې هغوی ته خپل حق نه رسیږي، او معاش نه ورکول کیږي.

فردین ۲۴ کلن ځوان دی، هغه په ملي پولیسو کې دنده تر سره کول، هغه په کال ۲۰۱۳ کې د مخالفینو په یوه بم کې ټپي شو، د هغه رسته او چپه پښې دواړه پرې شولې، خو رسته یې لږ ډېره او چپه یې کمه پرې شول.

نوموړي ته د ډیرو نورو ورته معیوبینو په څېر خپل معاش نه ورکول کیږي، ځکه نو هغه د شپې په تاریکي کې خپل د معیوبۍ پر چوکۍ باندي کښیني، د کابل د مکرویانو په سیمه کې د ګڼ ترافیک په منځ کې د خیرات ټولولو په لټه کې وي، نوموړی تل له ځانه سره دعا کوي چې د پخوانۍ دندې ملګري باندي پیښ نه سي، او دی په دغه حالت کې ونه ویني .

نوموړی وایي: کله کله زه په موټرو کې انجوني وینم چې وایي، هغه ځوان هلک ته وګورئ، هغه ولي په لارو کې خیرات ټولوي؟ خو هغوي زما تر کمبلي لاندي زما پرې شوي پښې نه ویني.

په هلمند کې د پولیسو د یوه روغتون مشر ډاکټر عبدل حامیدي وایي چې دغه ستونزه نور تر حد زیاتېدونکی ده، نوموړي د هلمند ولایت د سنګین

ولسوالۍ د دوهمي قطعي مثال ورکړ، او وې ویل چې په دغه قطعه کې ۳۴۴ تنو عسکرو څخه ۱۵۴ تنه یې د بریدونو او جګړو له کبله معیوبین شول، نوموړي دا خبره د تیر کال په دیسمبر میاشت کې وکړه، او زیاته یې کړه چې سږ کال تر بل هر کال حالت زیات خراب وه، او مخ په خرابېدو دي.

دغه روغتون چې د ایتالیې یوه خیریه موسسه یې چاري پر مخ وړي، اکثره سخت ټپيان ددغه روغتون ایمرجنسۍ وارډ ته راوړل کیږي، او هغوی هر کله په حکومت ځکه غوسه وي چې ورسره کومک نه کوي .

اته ویشت کلن محمد قاسم د محلي پولیسو (اربکیانو) یو مشر وو، هغه په مرجه کې خپله رسته پښه له لاسه ورکړه، نوموړی وایی: «حکومت یوازي په نامه حکومت دی.

دمحمد قاسم دوه نور ورونه هم د حکومتي ملیشې (اربکیانو) غړي دي، او هغوی هم د حکومت څخه تر زخمي کېدو وروسته هیڅ نه دي ترلاسه کړي. قاسم وایي، «که په طالبانو کې یو طالب په جګړه کې ووژل شي، طالبان د هغه کورنۍ ته د میاشتي ۱۵۰۰۰ افغانی (تقریبا ۲۷۵ ډالره) د راتلونکو دوو کلونو لپاره ورکوي، زمونږ حکومت تر طالبانو هم کمزوری دی.

د قانون سره سم هغه پولیس او عسکر چې په جګړه کې ټپیان کیږي، هغوی ته باید ددوی د وروستي معاش په اندازه تر عمره تنخا ورکړه شي، او همداسي د وژل شویو عسکرو پاته کورنۍ ته باید تر عمره د هغه تنخا ورکړه شي، مګر د فساد، اختلاس، ناسمي اداري، او تر اندازې زیاتي بیروکریسۍ له وجې هغوی ته خپل حق نه رسیږي.

که څه هم هغه عسکر چې د افغان د محلي پولیسو (اربکیان) په نامه یادیږي، د روانو جګړو له کبله زیاته مرګ ژوبله او تلفات لري، خصوصا د هلمند غوندي په ګرمو ساحو کې، خو هغوی ته بیا هم د حکومت له لوري تر ټپي کیدو او وژل کیدو وروسته هیڅ نه ورکول کیږي.

ځکه نو په پکتیا کې د محلي پولیسو (اربکیانو) قومندان صاحب خپل ځان باندي هغه وخت ټولي لاري تړلي ولیدلي کله چې د هغه حکومتي موټر د طالبانو په یوه ځمکني ماین ور برابر سو، او نوموړی د سخت ټپي کیدو تر څنګ معیوب شو، او یو څو میاشتې وروسته د هغه تنخا بنده سول، او هغه ته د معیوب کېدو په بدل کې هیڅ معاش نه ورکول کیده.

په کابل کې د سره صلیب نړیوالي اداري شپږ ځایه داسي روغتونونه جوړ کړي، چیري چې معیوبین مصنوعي اعضاء تر لاسه کوي، د هغوی د استعمال طریقه ور ښودل کیږي، او هغوی ته د نوي کار موندني لپاره روزنه ورکول کیږي

مګر صاحب په کابل کې یوه نیژدې روغتون ته د ورتګ پیسی هم نه لرلې، تر څو هلته د یوې میاشتي لپاره پاته سي، او د مصنوعي عضو تر لاسه کولو وروسته روزنه ورکړه سي.

صاحب وایي: دا زما لپاره ډیر د خواشینی حالت وو، او دا ددې (نور بي بي) لپاره ډیر د خواشینی حالت وو، چې دا مي ددې په ناخوښۍ د پیسو په بدل کې واده کړل، او زیاته یې کړه، د پښتنو په ټولنه کې چې کله پلار یوه پریکړه وکړي، نو لور ته یې منل په کار دي، که څه هم دا خوشحاله نه وي.

صاحب هم نه وو خوښ، خپل لور خرڅول تر ښپې پرې کیدو راته سخته وه، هغه وویل.

کله چې نوموړي خپل مصنوعي ښه تر لاسه کړل، هغه د پکتیکا په ولایت کې خپل کلي ته وګرځېد، چیري چې به هغه خپل پاته ژوند په بیکارۍ کې تیروي.

البرټو کایرو د سره صلیب له اړخه د هډوکو د بیا روغوني او مصنوعي اعضاو جوړوني د یوه مرکز مشر دی، نوموړی وایی چې دوی د افغانستان د زخمیانو لپاره ډیر امکانات په کار اچولي، خو زیاتوي چې لویه ستونزه داده چې دداسي

خلکو لپاره په داسي یو ټولنه کې خدمت کول ډیره ستونزمنه ده، چیري چې د معیوب چوکۍ او نوري اسانتیاوي نه پیژندل کیږي، او چیري چې دغه معیوبین داسي احساس کوي چې د ټولني له خوا شړل شوي دي.

پخوانی پولیس فردین وایي، چې زما میرمنې زما دوه ماشومان له ځانه سره بوتلل، او پلار مي له کوره وشړلم، دا خبره ما ډیر زوروي، نوموړي د خپلي غمجنې کیسې په بیانولو سره په ژړا وویل: «زه د ستونزو په جهنم کې اوسم.«

د کار، ټولنیزو چارو، شهیدانو او معلولینو وزارت وایي چې دوی هیڅ داسي ریکارډ نه لري چې فردین دي د خپل معاش د ترلاسه کولو لپاره اړیکه نیولې وي، خو فردین وایي چې ده ډیره هڅه وکړه، خو کله یې هم معاش تر لاسه نه کړ.

دا یو عام شکایت دی، او په دې وروستیو کلونو کې د افغانستان د حکومت اقتصادي مشکلات د معاشاتو اجراء ډیر کله ځنډوي، او د معاش د ترلاسه کولو لپاره د ټیپانو او معیوبینو اسناد اکثره د ځنډ سره مخ وي.

معیوب کارمندان، د پولیسو او پوځ معیوبین باید خپل معاش په پوره توګه سل فیصده تر لاسه کړي، او همداسي دوی باید وکړای شي چې دوی ته یو ځای سکالرشپ ورکړه شي، او نور مراعات تر لاسه کړي، خو بیا هم هغه کسان چې خپل حقوق ورته منظور شوي، اکثره د ځنډ شکایت کوي، او ډیر کله نه ورته رسیږي.



بل اړخ ته د افغان ملي پوځ د معیوب عسکرو سره نسبتا تر پولیسو ښه معامله کیږي، او د معاشاتو د نه تر لاسه کولو شکایت نسبتا تر پولیسو کم لري، او هغه علاج چې د کابل په فوځي روغتون کې دوی ته ورکول کیږي، د پولیسو تر عادي روغتونونو ډیر ښه دی، یو خاص او لوی وارډ دداسي کسانو لپاره خاص شوی چې تازه معیوب شوي وي، او دغه معیوبین هلته د علاج څخه خوښ دي، خو وایي چې هغه ټولنه چې دوی یې په خدمت کې اعضا له لاسه ورکړي، دوی غورځولي او ددوی د قربانیو قدرداني نه کوي.

د ملي پوځ یوه پخواني عسکر حشمت الله بارکزي چې ۲٦ کاله عمر لري، وویل: «دلته په افغانستان کې زمونږ د قرباني او زمونږ د هڅو هیڅ قدرداني نسته.«

نوموړی په سپیشل فورس کې عسکر وو، مخالفینو د هغه کور ته لاسي بم هغه وخت ور وغورځوی، کله چې هغه د رخصتۍ تیرولو لپاره کور ته تللی وو، چې له کبله یې رسته پښه له لاسه ورکړه.

حشمت الله بارکزي کوزده کړې وه، خو تر اوسه یې واده نه وو کړی، د هغه میرمني د خپلو قریبانو په فشار د نوموړي سره اړیکه وشکول او خپله کوزده یې لغوه کړه، او دی یې یوازي پرېښود.

د پولیس او پوځ ستونزي چې هر څومره دي، هغه د افغانستان په سطحه د معیوبینو یو ډیره وړه برخه جوړوي، ځکه چې په تیرو څلورو لسیزو کې د جګړو له کبله اندازا ۳ ملیونه افغانان معیوب شوي.

ليکنه
فرهاد ـ ش

# دقطر کنفرانس دچا په ګټه؟

ځينو خلکو ته ممکن ظاهرًا داسې ښکاري چې ملګري ملتونه او په افغانستان کې ښکيل بهرنيان ، په دې وتوانيدل چې بالآخر ، طالبان د کابل له ناوسه اداري سره د خبرو ميز ته کښينوي ؛ دا ځکه چې طالبانو په دا ډول آزادو کنفرانسونو کې پخوا هم ګډون کړی ؤ ؛ خو توپير يې دا و چې د کابل د اداري او يا د سولې په نوم شورا رسمي او يا غير رسمي استازو به پکي شتون نه درلود . يوازنی د پګواش غونډه وه چې د طالبانو د رسمي آستاځو سره د کابل د اداري ځينو کسانو په نارسمي شکل پکي ګډون کړی و . له دې سره سره چې د پګواش سيمينار په هيڅ صورت د مذاکراتو برنامه نه وه ؛ بيا هم ځينو کړيو دا فکر وکړ چې د پګواش په وسيله دا د امريکايانو يوه لاسته راوړنه شوه چې د طالبانو له هميشني انکار سره سره يې د کابل د اداري ځيني استاځي د هغوی (طالبانو) په مخکې کښينول او يو ډول مشروعيت يې ورته ورکړ . خو زه فکر کوم چې د لاندي وجوهاتو پر بنا، دا ډول انګېرنه ناسمه ، او حقيقت د دې برعکس ښکاري .

لومړی دا چې په ټوليزه توګه په دا ډول کنفرانسونو کې طالبانو هميشه سياسي بريا موندلې ، ځکه چې طالبانو د خپلې يوه نيمې لسيزې جهادي مبارزې ، چې د بهرنيو اشغالګرو په وړاندې يې پيل کړې ؛ انګېزه او مقصد په خورا ښه توګه د نړيوالو تر غوږونو پورې ورسا وه ، خپل سياسي موقف يې نړيوالو ته واضح کړ ، طالبانو دا وښودله ، لکه څرنګه چې په نظامي ډګر کې دوی د پرمختګ په حال کې دي ، اوس يې په سياسي ډګر کې هم ورو ورو د نړيوالو پام ځان ته را اړولی دی . خو د پګواش سيمينار يې سياسي موفقيت نور هم ورسِوا کړ . دا ځکه چې طالبانو په ياده غونډه کې خپل موقف داسې وړاندې کړ ، چې هغوی يې نور هم په سياسی لحاظ وځلول او د مخالفو جهتونو حيثيت يې له توقع برخلاف ، خورا زيانمن کړ .

١ - د طالبانو استاځو پخپله وينا کې هغه آساسي ټکی وړاندې کړل چې پر زمينی حقايقو بناء او د افغانانو بنستيز ضرورتونه دي ، او له دې پرته نه د افغانستان شخړه حل کيدلای شی او نه هم امکان لري . طالبانو هغه شعاري خبري په مطلق ډول رد کړي چې د کابل اداره يې د ملي مصالحو پر بنياد نه بلکي د خپلو شخصي ګټو لپاره هميشه د سولي او روغي په نامه بدرګه کوي.

مثلاً : طالبانو وويل : بهرنيان دې له قيد وشرط پرته ووځي ، امنيتي تړون دې لغوه شي ، آساسي قانون دې له سره تدوين شی ، تور ليست دې ختم شي ، اشغالګر دي زموږ په کورنيو امورو کې له مداخلې لاس واخلي . افغانان دي په خپل منځ کې رينبتيني اوعادلانه تفاهم ته ورسېږي اوعادلانه تفاهم ته پريښودل شي . د نامسئوله وسلوالو پروژي دې ختمي شي . او داسي نور ...

د طالبانو د اعلاميې د متن څو ټکی داسي دي : ...که يرغل کوونکي هيوادونه واقعاً غواړي چې په افغانستان کې وضع بدله شي ، نو ترهرڅه دمخه بايد په واقعيتونو ولاړه تګلاره رامنځ ته کړي . د افغان ولس مشروع حق ، چې هغه خپلواکي او د خپلي خوښي نظام دی ؛ ومني . دا ځکه چې سوله د عدالت د تامين

په نتیجه کې راتلی شی ، د ظلم ، یرغل ، تبعیض او زورواکی په نتیجه کې نشی راتلی . زموږ د هیواد تاریخ د دې ټکي ښه گواه دی.

۲ - څرنگه چې د پگواش غونډه ترډېره بریده د طالبانو تر اغیز لاندې دایره شوه ،د بهرنیانو اثر پکې ډېر کم، او د کابل ادارې خو بالکل اثر نه و؛ له دې امله یې پایله هم یوازې د طالبانو په گټه تمامه سوه . پگواش چې ځیني خلک ور ونه بلل او یا یې له رسمي حیثیت سره ور ونه غوښتل ؛ دا هم د طالبانو د اغیز له امله و . ځکه چې طالبانو له پگواش سره د اشرف غني د رسمي نماینده او د سولې شورا د دارالانشاء د رئیس معصوم ستانکزي د گډون خبره ونه منله .

۳ - طالبانو د خپل موقف په بیانولو سره واضحه کړه چې د افغانستان د قضیې ځیني اساسي اړخونه فعلاً له بهرنیو متجاوزینو سره تړاو لري ، نه له داخلي بې واکه چارواکو سره ، ځکه باید ډېر تمرکز پر دې وشی چې لومړی همغه بهرني متجاوز جهت حقایقو ته غاړه کښېږدي او د افغانانو له څورولو لاس پرسر شي .

۴ - طالبانو د خپلې اعلامیې د اورولو په جریان کې ، بیا بیا هغه آوازې رد کړې چې گواکي دوی به د کابل له ادارې سره د چا دفشار په نتیجه کې وگوري . چې په دې توگه یې نړۍ او خصوصا کابل ادارې ته وښوده چې مونږ د هېچا د فشار په نتیجه کې له خپل استقلالیت او خپلواکۍ څخه نه تېرېږو، زمونږ تصمیم او پرېکړې زمونږ خپلې دي، کوم کار چې مونږ یې د اسلامي اصولو او ملي گټو په نظر کې نیولو سره کول غواړو هغه د نورو له فرمایشونو او فشارونو پرته په خپله کوو، او هر ځای او هر وخت چې وغواړو کولی یې شو .

۵ – بل د پام وړ ټکی دا دی چې امریکایان او ورسره ملگري اشغالگر ځواکونه خو تر ننه طالبانو ته په دومره څه قائل نه وو ، چې هغوی دې بیا وکولای شی ، د جگړییزي بریا ترڅنگ دې په سیاسي میدان کې هم دوی او د دوی گوډاگیان چیلنج کړي .

مگر طالبانو د همدې ډول کنفرانسونو له طریقه وکولای شول چې په نړیواله سطحه خپل سیاسي شتون او موقف ژوندی وساتي او مقابل لوري وننگوي.

دې او دې ته ورته څو نورو .... دلائلو په آساس ویلای شو چې د پگواش سیمینار د طالبانو موقف پیاوړی او د کابل د ادارې هغه یې ډېر کمزوری او پیکه کړ . په بل عبارت ، د پگواش غونډې د کابل د حکومت حیثیت او مورال سخت زیانمن کړ . له همدې ځایه وه چې د غونډې تر دائریدو وړاندې هغوی د دې ډېره تلوسه لرله چې په رسمي او اغیزمن ډول د حکومت او په اصطلاح د سولې شورا غړي پکې گډون ولري ؛ مگر د غونډې تر ختمیدا وروسته یې منفي څرگندوني پیل کړې . د بیلگې په توگه : د اشرف غني مشاور او د ملی امنیت غړي حنیف اتمر : په پارلمان کې وویل : په قطر کې د پگواش غونډه زموږ له نظره رسمي غونډه نه او نه مونږ ورکې رسمي استازی درلود ، هلته چې هرچا گډون کړی او نظرونه یې وړاندې کړې ؛ هغه شخصي او دولت یې د هیڅ ډول پرېکړو د عملي کولو په اړه ځان مسئول نه بولي .

همدا ډول اظهارات د گډ حکومت اجرائیه رئیس ډبل عبدالله هم د کندهار د نوي والي د معرفي کولو په غونډه کې وکړل . دا راز د اشرف غني ویاند وویل چې په دې غونډه کې ددوی کوم استازي گډون نه دی کړی، او دوی له دې غونډې کومې هیلې هم نه لري.

زه فکر کوم چې له یاد کنفرانس وروسته به ښایي د طالبانو په اړه د ډېرو فکرونه بدل شوي وي ، او له دې وروسته به د ریښتینو حقایقو په رڼا کې گام پورته کوي، نه د نورو د پروپاگند او تبلیغاتو پر آساس.

# یو حکومت

# دوه یې سرونه

# شل یې خولې

له خولو نه مې مراد د امریکا او دوه سري حکومت همکاري رسني، سوړن ویاندویان، والیان او ولسوالان دي، په دې ټول خبر یو چې امریکا له یرغل سره سم د رسنیو په تولید هم پیل وکړ او آن د کرزي د اداري له پیله تر اوسني دوه سري حکومته پورې دغه تولید دوام لري او لا هر نوع رسنۍ په دې موخه زیاتېږي چې دوی ته یې گټه ورسي او لاسته راوړنې ترې ولري؛ خو د طبیعت ځار شم د ټولو رسنیو ژرندې د دوی د مفروضې خلاف د اوړو ورکولو په ځای د دوی په سرونو، لاسونو او پښو څرخي، زموږ د کلیوالو په اصطلاح بې چاره گان یې خچ پچ واچول.

طالبان چې یوازې دوه ویاندویان، صرف یوه ویب پاڼه، په بیلابیلو ژبو ۵ مجلې، دوه درې ستودیوگانې او انلاین رادیویي خپروني لري، هغه گټه یې تر گورت کړې کومه چې دښمن یې په لسگونو رادیویي، تلویزیوني، چاپي او انلاین خپرونو او تبلیغاتو کې تر لاسه نه کړه، که تېرو حالاتو ته متوجه شو دې پایلي ته رسېږو چې ښایي وروسته یې هم مفروضه فایده په لاس ورنشي-او د رسنیو د اوسني تعداد په درې چنده کولو سربېره به هم ترې محروم پاتي شي.

په تېرو ۱۳ کلونو کې د دې خبرې د ثبوت دلایل زیات دي او حتی د هیواد اوسني حالات هم د دې خبرې ښکارندویي کوي، دلته به په اوسنیو حالاتو کې یوازې د کندز تازه جگړو ته ځیر شو او وبه گورو چې د جگړې له ډگره رالږي په رسنیز ډگر چا تاوان کړی او څوک پکې ډېر بریالي دي.

د امام صاحب ولسوالۍ زیاته برخه د طالبانو په لاس کې وه خو کله چې یې د ودانۍ نیولو ته عزم وکړ او له درې طرفه یې په دفاعي پوستو برید ښخ کړ، ټولي پوستې یې فتحه کړې او د ښار اولې ناحیې ته ورسیدل نو د امام صاحب محاصره ولسوال چې خورا یې زړه درزېده او د ډار په حال کې و، د کلید رادیو له لارې یې غږ وکړ چې واااا بهرنیانو او کورنیو عسکرو ولسوالۍ یې رانه ونیوله، په دې وخت کې نو د کندز والي چې د گورتیپې لخوا یې د طالبانو مرمۍ تر غوږ تېرېدې له یوې بلې رسنۍ نه د طالبانو د عزم په ضد د گټه اخیستلو په موخه راڅرگند شو او په ډېر شد او مد یې د طالبانو د شا تگ خبره وکړه خو بې چاره دې ته پام نه درلود چې ولسوال یې د مرمیو تر سیوري لاندې سلگۍ او وروستۍ استغاثه کوي.

له جگړې سره سم په سیمه کې بیړنۍ حالت اعلان شو، نوی قوماندان او تازه دمي عسکر ورسیدل او اشغالگرو عسکرو پکې هوایي او زمیني ونډه واخیسته چې ډیرښت یې طالبان په خپل ځای تم کړل خو شاته نشول، ولسوال او والي چې لږ ساه پکې وچلیده او خوشحاله شول نو یو ځل بیا یې خلک د رسنیو له لارې د کورنیو او بهرنیو سرتېرو په راتگ خبر کړل، دلته نو د کورنیو چارو د وزارت هم زړه وتخنید چې د سیمې په حالاتو څو خبري وکړي، صدیق صدیقي یې چارج او خبري یې ورزده کړې او هغه له تلویزیونونو سره وویل چې د طالبان په شاتمبولو توره یې کړې او په دې مخنیوي کې یې له بهرنیانو مرسته نه ده غوښتې، بې چاره د والي او ولسوال غږونه نه وو اورېدلي چې د سر بچ کیدو په خوشحالي کې یې لاپخوا له بهرنیانو مننه وکړه.

خو طالبان چې د عزم له پیله له عسکره را نیولي تر رهبره پورې په یوه خوله دي، په هیڅ خبره کې نه دي خطا شوي، نه یې په خپلو رسنیو کې او نه یې هم له نورو سره په مرکو کې

تېروتنه کړې ده، له اولي ورځې يې دا خبرونه دي چې د اربکيانو / پوليسو / اردو پوسته مو فتحه کړه، د اردو او اشغالګرو ګډ بيس مو ونيو او د ګډ دښمن تعرضي برید مو په شا کړ او دغه راز فلان او فلان کلي مو له اربکيانو/ اردو/ پوليسو/کماندويانو او يرغلګرو عسکرو تصفيه کړل.

دا هغه څه دي چې صرف حقيقت ښکاره کوي، د طالبانو په ليکو کې که په حقيقت خبره نه کيدلای شاید په يو او بل ناخبري او نوادر يې له يرغلګرو او دوه سري اداري زيات خندونکي وای، مګر اوس چې هر څه يې په ريښتينولي بنا دي، په سلګونو خبرونو او خبرپاڼو کې ترې يوه هم داسې تيره نشوه چې له بلې سره دي په ټکر کې وي، اما دوه سري اداره او بادار يې چې په خدمت کې ډيري رسنۍ لري، ډير کله داسې څه ورپېښېږي چې د دوی په تاوان او د مقابل جهت په ګټه تمام شي، لکه پورته مو چې يادونه وکړه.

اوس نو دوه سري اداره له طالبانو سره په رسنيز ډګر کې دکاميابي ترلاسه کولو لپاره يوازې دوه لارې لري، هغه دا چې يا به رسنې د طالبانو د رسنيو تعداد ته را ټيټوي او يا به دروغ نه وايي، که داسې و هم کړي بريا يې مشکوکه ښکاري؛ ولې د رسنيو په کمبود کې له دې سره سره چې مسلکې افراد ورته لري په دې ډګر کې به د کاميابۍ مخ ځکه ونه ګوري چې کارکونکې يې د زړه له تله د يوې عقيدې له مخې خوله او لاس نه ښوروي بلکه د څو غمجنو/پيسو ترلاسه کولو په موخه يې متې رابډ وهلي دي چې دا په خپل ذات کې د ناکامۍ مور بلل کېږي؛ او که دروغ وايي نو ظاهره ده چې داسې به الله تعالی، ولس او تاريخ ته شرمېدلي وي لکه چې وينو يې، او د حقيقت څرګندل نو بيخي ورته د ځان حلالولو په معنی دي چې هيڅکله يې نشي- ويلای.

بيا هم حقيقت دادی چې شل او سل ميډيايي خولې د لويديځ او دوه سرې اداري ښوري خو ګټه يې مجاهدينو ته رسېږي، ښتانه وايي چې بخت دي برابر شي چراغ به دي په اوبو کې لګېږي.

## در حریم اُنس

فکر توحیدی طلسم جبر باطل بشکند
اختیار وعقل هردیوارو حائل بشکند

نظم خلقت، حکمت وتدبیرهستی در جهان
هر خیال مُهمل وتصویر جاهل بشکند

از صدای حرکت ذرات تا اوج فلک
پرده های گوش هرانسان غافل بشکند

هُشدارای نا خدا ! لنگر نیاندازی به عُجب
گر تامل از کفت دور گشت ساحل بشکند

کاروانِ زندگی اندر خم وپیچ زمان
با نوای گرم فطرت سیر منزل بشکند

پر خطرباشد تمام وادیِ دور حیات
استواری گر نباشد ، گام راحل بشکند

از دَرای قافله صوتِ هم آهنگی رسد
گر نباشد نظم حرکت، بار محمل بشکند

«تارو پود موج این دریا به هم پیوسته است»
(۱)«می زند برهم جهان را هرکه یکدل بشکند»

زرق وبرق زندگی را مُهلتِ اندک شمار!
مرگ آنی شیشهٔ عُمرِ توعاجل بشکند

در حریم اُنس می باید سرا پا گوش بود
پر زبانی ها شکوه خاص محفل بشکند

آشیان باالست شعرِ«صائب» و«بیدل» «عزیز!»
بال پروازِ بلند مرغ «بسمل»(۲) بشکند

# گناهان کبیره

آنچه از قرآن وسنّت فهمیده می شود این است که گناهان بر دوقسم اند (گناهان صغیره) یعنی: گناهان کوچک و( گناهان کبیره) یعنی : گناهان بزرگ .

گناهان صغیره در دنیا با دوطریق بخشیده می شوند با توبه ویا انجام نیکیها ولی گناهان کبیره فقط با توبه بخشیده می شوند.

و علماء شرایط توبه را چنین بیان نموده اند وگفته اند که اگر فردی می خواهد از گناهی توبه کند که تعلقش به حقوق الله است همانند توبه از شرک ؛ پس باید در توبه او سه شرط یافت شود تا توبه اش صحیح و مورد قبول الله مهربان قرار گیرد:

۱= از گذشته ای که این گناه را انجام داده پشیمان گردد.

۲ = در حال حاضر آن گناه را ترک کند.

۳= در آینده آن گناه را دیگر انجام ندهد.

ولی اگر فرد خواست از گناه کبیره ای که تعلقش به حقوق الناس است توبه کند همانند دزدی ؛ علاوه از سه شرط بالا باید شرط چهارمی هم یافت شود وآن اینکه از فردی که حقش را پایمال نموده حقش را پرداخت کند ویا حلالیت به طلبد تا اینکه اورا ببخشد .

در توبه از گناهان هریک از شرائط کم باشد توبه قبول نیست و عند الله اعتبار شرعی و دینی ندارد.

بعد از این بیان توضیح مختصرمناسب می دانم فهرستی از گناهان کبیره را بیان نمایم تا

امام ذهبی کتابی به نام (الکبائر) نوشته اند ودر آن گناهان کبیره را ذکر نمودند که مجموعه آنها به هفتاد گناه می رسد و با ذکر آیات واحادیث متعددی کبیره بودن آنها را به اثبات رسانده اند وبنده در اینجا بطور فهرست وار نام آنها را ذکر می کنم تا بنزد هر یک ازخوانندگان گرامی لیستی از گناهان کبیره موجود باشد تا هر گاه که شیطان خواست او را فریب دهد بزرگی این گناهان را بیاد آورده واز گرفت الله مهربان بترسد و از انجام آن پرهیز کند تا بدین طریق خویش را ازگناهان و دام شیاطین محفوظ داشته و مورد خشم الله قرار نگیرد.

گناهان کبیره ای که امام ذهبی در کتاب (الکبائر) ذکر نمودند از قرار زیر می باشند:

١ = شرک به الله.

٢ = آدم کشی.

٣ = جادوگری.

٤ = بی نمازی.

٥ = زکات ندادن.

٦ = بدون عذر روزی از روزهای رمضان را روزه نگرفتن.

٧ = با وجود توانائی حج نکردن.

٨ = نافرمانی پدر ومادر.

٩ = با اقوام وخویشان قهر وقطع روابط نمودن.

١٠= زنا.

١١= لواطت.

١٢ = سود خواری.

١٣= مال یتیم را به ناحق وظلم خوردن.

١٤ = برالله ورسولش دروغ بستن.

۱۵ = از میدان جهاد ونبرد فرار کردن.

۱٦= خیانت رهبر به ملت و ظلم نمودن به آنها.

۱۷= تکبّر.

۱۸= به دروغ گواهی دادن.

۱۹=شراب نوشی.

۲۰ = قمار بازی.

۲۱ = تهمت زدن به زنان عفیفه وپاکدامن.

۲۲ = خیات در مال غنیمت وبیت المال .

۲۳ = دزدی.

۲٤ = رهزنی.

۲۵= قسم به دروغ خوردن.

۲٦= به مال وآبروی مردم تعرض کردن (مال مردم خوردن وآبروی مردم ریختن).

۲۷ =به ناحق مالیت گرفتن.

۲۸ = حرام خواری.

۲۹ = خودکشی.

۳۰= دروغگوئی.

۳۱= قاضی بد وخلاف شرع .

۳۲= رشوه.

۳۳ = زن و مرد خویش را به یکدیگر تشبیه کردن.

۳٤= دیّوث بودن.

۳۵ = حلاله گر و کسی که برایش حلاله می شود.

۳٦ = از ادرار پرهیز نکردن یعنی : بدن ولباس را از ادرار محفوظ نداشتن.

۳۷ = ریاکاری نمودن.

۳۸= علم دین برای حصول دنیا یادگرفتن و پوشاندن علم.

۳۹= خیانت نمودن.

٤۰ = نیکی نمودن و آن را بر رخ افراد کشیدن واظهار احسان نمودن.

٤۱ = انکار تقدر نمودن.

٤۲ = جاسوسی نمودن.

٤۳ = سخن چینی.

٤٤ = لعنت نمودن ودشنام دادن.

٤۵ = عهد شکنی و بی وفائی نمودن.

٤٦ = سخن کهنان ومنجّمان راقبول نمودن.

٤۷ = نافرمانی نمودن زن ازدستورات شرعی شوهر.

٤۸ = عکس گرفتن وعکاس بودن.

٤۹ =زمان مصیبت آه و واویلا کشیدن، کلمات خلاف شرع گفتن ، بر سر صورت زدن وگریبان دریدن.

۵۰ = بغاوت وسرکشی.

۵۱ = زورگوئی وقلدوری نمودن بر ضعیف، خادم، زن وحیوانات.

۵۲ = همسایه آزاری.

۵۳ = مسلمان آزارای ودشنام دادن مسلمان.

۵٤ = آزار رسانی به بندگان الله متعالی وخود را بر تر دانستن برآنان.

۵۵ = پاچه شلواراز قوزک پایین بودن ویا لباس را به قصد تکبر از حد معمول دراز ترنمودن.

۵٦ = لباس ابریشمی و یا طلا پوشیدن برای مردها.

۵۷ = فرار نمودن برده از نزد آقا وصاحبش.

۵۸ = حیوانات را برای غیر الله ذبح نمودن وکشتن .

۵۹ = دانسته پدرواقعی را انکار شدن وادعی نمودن که فرد دیگری پدرش هست.

٦۰ = مجادله و مباحثه به بناحق وبرای دفاع از باطل.

٦۱ = آب اضافی را در زمان نیاز به مردم نیازمند ندادن.

٦۲ = در معاملات در کیل ، وزن ومتر نمودن اجناس کمی نمودن.

٦۳ =خود را از تدبیر وگرفت الهی در امان دانستن.

٦٤ = از رحمت الهی نا أمید شدن.

٦۵ = بدون عذر همیشه نماز را تنها خواندن ونماز با جماعت را بدون عذر شرعی ترک نمودن.

٦٦ = نمازهای جمعه را همیشه و بدون عذر شرعی ترک نمودن.

٦۷ = در وصیت نامه به حق کسی ظلم نمودن.

٦۸ = مکّاری وفریبکاری.

٦۹ = راز مسلمانان را به کفار و دَشمنان اسلام گفتن.

۷۰ = یاران صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ را دشنام دادن.



# درآمد انگلیس از افغانستان چقدر بوده است؟

اندیشکده خدمات متحد سلطنتی انگلیس که موسسه ای معتبر است در جدیدترین گزارش خود برآورد کرده که هزینه مداخله انگلیس در جنگ افغانستان و عراق، به سی میلیارد پوند رسیده است.

بنابر آمار این اندیشکده این سی میلیارد پوند که به طور متوسط برای هر انگلیسی یک هزار پوند می شود، در حالی است که اشغال افغانستان و حضور نیروهای خارجی نه تنها کشت خشخاش را در کشور ما کاهش نداده، بلکه تا چندین برابر آن را بیشتر هم کرده است.

انگلیس تحت نخست وزیری تونی بلر در سال ۲۰۰۱ همراه با آمریکا به کشور ما حمله کرد. تونی بلر متهم است پارلمان انگلیس را درباره حمله به افغانستان و عراق فریب داده بود اما وی اصرار دارد و مانع تاخیر در تحقیقات در خصوص علت مداخله انگلیس در این دو جنگ نشده بود.

براثر مداخلات صورت گرفته، کمیته تحقیق پس از چهار سال هنوز نتایج تحقیقات خود را در این باره اعلام نکرده است که علت آن کاملا مشخص است زیرا مقامات انگلیس و آمریکا نمی خواهند خیانتهایی را که انجام دادند، برملا شود.

سوالی که در اینجا مطرح می شود این است که درآمد انگلیس از افغانستان چقدر بوده که این میزان هزینه کرده است؟!

سه سال پیش هیلاری کلینتون در پاسخ به سناتوران مجلس سنای آمریکا گفت: که کاخ سفید تنها یک دهم از آنچه که از افغانستان به دست می آورد، خرج می کند. یعنی ده دالر به دست می آوریم و یک دالر برای خود افغانستان ها خرج می کنیم.

حال اگر همین تخمین را درباره انگلیس در نظر بگیریم باید بگوییم انگلیسی ها ۳۰۰ میلیارد پوند از افغانستان و عراق درآمد داشتند که ۳۰ میلیارد آن را خرج کردند.

آن هم در حالی که در ۱۴ سال گذشته انگلیس به همراه جامعه بین المللی میلیاردها دالر به افغانستان تزریق کرده اند اما مساله این است که پول کمکها به مردم عادی افغانستان نرسید و بیشتر در دست مقام های فاسد داخلی و خارجی حیف و میل گردید.

بنابراین هم دولت کابل و هم جامعه بین المللی مسوول هدر رفتن پول کمک ها بوده اند و حاصل این شده است که با گذشت بیش از سیزده سال از جنگ، هنوز مردم ما شرایط خوبی ندارند، فساد گسترده ای دولت را فرا گرفته و بیشتر مردم زیر خط فقر زندگی می کنند و گرسنه به رختخواب می روند.

البته پیشرفت های اندکی هم در برخی مناطق مشهود است که نسبت حجم کمکها بسیار ناچیز است.

## په نرمي سره خلک ښو ته رابلل

شیخ عبد الرحمن السعدي (۱۸۸۹م / ۱۹۵٦) رحمه الله یو مشهور عالم و، د کور له پاره یې د سونګ لرګي واخیستل، مزدور هغه کورته د ننه کول په کار کې د سیګرټو ډبې ورنه لویدلې و او شیخ وراخیستی و، د کار له ختمولو وروسته یې مزدور ته پیسې ورکړې او د سیګرټو ډبې یې هم ورته ونیو، مزدور ډېر خجالت شو او شیخ ته یې کړه: ما فکر کاوه تاسو به ډبې مات کړی وي او ماته به غوسه یئ .. شیخ ورته وویل: که مې مات کړی وی نو دا د لرګیو په ګټه به دي بل اخیست او د اولاد نفقه به دي کمه شوې وه، مزدور غیږ ورکړه، په سر یې ښکل کړ او زیاته یې کړه: په الله قسم کوم چې له دې وروسته به هیڅکله سیګرټ ونه څکوم.

# د صحابه کرامو رضي الله عنهم لقبونه

دا د حضرت علي رضي الله عنه لقب دی کله چې رسول الله صلي عليه وسلم د فاطمې رضي الله عنها کور ته ورغی نو پوښتنه يې ترې وکړه چې د تره ځوی دی چیرته دی؟

نو هغې رض الله عنها ورته وویل: مسجد کې دی.

نو رسول الله علیه افضل الصلاة والسلام ورغی نو په داسې حات کې يې ولید چې څادر يې د ملا نه لویدلی وه او ملا يې په خاورو شوې وه نو رسول اله علیه افضل صلاة والسلام يې د ملا نه خاورې پاکې کړې او ورته يې وویل: پاڅه او کینه یا ابو ترابه! دا يې ورته دوه ځله وویل .

۲- أبو المساکین.

دا د حضرت جعفر بن ابي طالب لقب وه. ابو هریرة رضي الله عنه وايي: (کان خير الناس للمساکين جعفر بن ابي طالب

۳- اسد الله

دا د حضرت حمزة ابن ابي طالب رضي الله عنه لقب وه.

۴- أمين الامة

دا د ابو عبیدة عامر ابن جراح رضي الله عنه لقب وه د ده په باره کې رسول الله علیه السلام وايي:

(لکل امة امينا و امين هذه الامة ابو عبيدة بن عامر بن جراح)

۵- ابن ام عبد

دا د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه لقب دی کله کله به رسو الله ورته ويلې او رسول الله د ده په باره کې وايي: (فقيه امتي)

۶- امام المهاجرين.

دا د سالم رضي الله عنه لقب وه. هغه د مهاجرينو امام وه کوم چې د مکې نه مديني ته راغلي ول او په قباء کې به يې جمع ورکوله.

۷- بحر.

عبد الله ابن عباس رضي الله عنه ته به يې بحر ويل رسول الله علیه وسلم ورته دعا هم کړې وه.

۸- ترجمان القران

عبدالله ابن عباس ته ترجمان القران وايي.

۹- جامع القران.

دا د زيد بن ثابت رضي الله عنه لقب دی

۱۰- حاجب الکعبة المعظمة.

دا د شيبة بن عثمان رضي الله لقب دی

۱۱- حب رسول الله.

دا د زيد بن حارثة رضی الله عنه لقب دی.

۱۲- الحب بين الحب.

دا د اسامة بن زيد رضی الله عنه لقب دی.

۱۳- حبر الامة.

دا د عبد الله ابن عباس رضي الله عنه لقب دی.

۱۴- حواري رسول الله.

دا د زبير بن عوام رضی الله عنه لقب دی د خندق د غزا په ورځ رسول الله علیه صلاة وسلام وو ویل: داسي به څوک وي چې د بني قريظة خبر راوړي؟ نو زبير رضي الله عنه وويل: زه. يا رسول الله! رسول الله علیه صلاة وسلام لاړ او بيا راغی بيا يې دا خبره تکرار کړه زبير رضي الله عنه ورته بيا وويل زه. رسول الله صلاة الله علیه بيا لاړ او لږ شيبه وروسته بيا راغی بيا يې دا خبره وکړه او بيا هم زبير رضي الله عنه ورته وويل زه. نو رسول الله علیه صلاة وسلام وويل: (لکل نبي حواري، و زبير حواري و ابن عمتي ).

۱۵- خادم رسول.

دا د انس بن مالک رضي الله عنه لقب وه.

۱۶- خطيب رسول الله.

دا د ثابت بن قيس رضي الله عنه لقب وه.

۱۷- ذات النطاقين.

دا د اسماء بنت ابي بکر رضي الله عنها لقب وه.

۱۸- ذو الجناحين.

دا د جعفر ابن ابي طالب لقب دی. د مؤتة غزا په ورځ بيرغ د ده په ښي لاس کې وه کله چې هغه پرې شو نو په چپ لاس ته يې بيرغ واړوه کله چې يې چپ لاس پرې شو نو د سينو په منځ کې يې ونيو تر دې چې شهيد شو او د ده عمر په دې وخت کې ۳۳ کاله وه نو خدای به ورته په جنت کې د لاسو بدل کې دوه وزري ورکړي خو په کومه يې خوښه وي الوځي به.

۱۹- ذوالنور.

دا د طفيل بن عمر الدوسي رضي الله عنه لقب وه د ده په سر کې يوه ډيوه غوندې وه چې د شپې به يې رڼا کوله.

۲۰- ذو النورين.

دا د عثمان بن عفان رضي الله عنه لقب وه. ده د رسول الله صلی الله علیه افضل الصلاة والسلام لور رقية په نکاح کړې وه. کله چې وفات شوه نو رسول الله علیه سلام بله لور ام کاثوم ور په نکاح کړه.

# غزل

عبدالاحد حماد

لرې لرې رانه لرې اور به واخلي
فدايي يمه کاپيرې اور به واخلي

ښاپيرۍ ستا په ورغوي کې سندرې
ښاپيرۍ د نجونو ميرې اور به واخلي

مه راګوره شهادت يم سينګار کړی
ددې چم دښايست حورې اور به واخلي

تر پلو لاندې چې غلي ګورې
د بريښنا سکنی لورې اور به واخلي

که د وليد خپل هنر زما پر بريښنا مخ
د زرګر د زړګي خيرې اور به واخلي

وي د زړه درزا د عشق د اور پېلوزی
په خپل خيال باندې مغرورې اور به واخلي

په دې ټکنده غرمه په سره سالو کې
آخر اې د ظالم لورې اور به واخلي

لکه شناخته په زيارت باندې ځنګيږي
د حماد په ځير زهيرې اور به واخلي

